# فهرست

## سریزه

الحمدلله ، والصلاة على رسول الله صلى الله عليه وسلم

امابعد :

الله تعالى خپل رسول محمد بن عبدالله صلى الله عليه وسلم له هدايت او حق دين سره ليږلی تر څو خلک د الله تعالى په اذن له تيارو څخه نور ته وباسي او هغوی ته يې په توحيد أمر کولو او له شرک څخه يې منع کول ، او هغوی ته يې په هر خير کوم چې د الله تعالى د نږديوالي او خوښۍ سبب وو لارښوونه کوله او د هر هغه شر څخه چې د الله تعالى د قهر او غضب سبب کيده منع کول .

پس د خلکو غوره کسانو يې پيروي وکړه او الله تعالى د هغوی مدد وکړ او پر خپلو دوښمنانو يې کامياب کړل او پر ځمکه يې واکمن وګرځول او د اسلامي نظام بنسټ يې کيښود او دوی د خلافت او يا اسلامي نظام حکم ته ژمن وو .

او يقيناً چې مسلمانانو د دغه نظام تر سيورې لاندې د خير او خوښۍ ژوند کولو ، تر دې چې د ځمکې ختيځ او لويديځ فتح شول او په هغه کې د توحيد کلمه «لا اله الا الله محمد رسول الله» لوړه شوه او د اسلام بيرغونه ورباندې ورپيدل .

او دې کار تر ډېرې زمانې پورې دوام وکړ ، او بيا د امت په بدن کې ضعف پيدا شو ، خلک د دنيا په سينګار او فتنه اخته شول د هغه په حرص کې ډوب او په هغه باندې راضي او خوښ شول او د اسلامي نظام حکم له حقيقت څخه يو پر بل پسې تغير وکړ تر دې چې کافران پر هغوی باندې غالب شول او ډېر اسلامي هيوادونه يې تر خپل واک لاندې راوستل .

دوی خپل ټول ځواک ددې لپاره وکارولو تر څو د مسلمانانو اړيکه له خپل دين سره څنګه پرې کړي ، د هغوی په منځ يې د عقيدې ، سياست ، ټولنې او د ژوند په نورو برخو کې بې لارې او کاږه مذاهب خپاره کړل ، بې ستری د نارينه او ښځو تر منځ کډوالي او اختلاط ته يې بلنه وکړه او د خلکو په منځ کې يې فحشاء او بې حيايي خپره کړه او د ډېر افسوس ځای دا چې ځنو خلکو د وخت په تېرېدو سره د هغه پيروي وکړه ، تر دې چې په راتلونکي کې به اسلام د هغوی په منځ کې غريب او نا آشنا وي .

مګر الحمدلله په دغو وروستيو وختونو کې د زياتو مسلمانانو لخوا يو ډول لوالتيا پيدا شوه چې په دغه اړه ژورې څېړنې وکړي او په ډېرو هيوادونو کې اسلامي بيدارۍ او اسلامي حرکتونه پيل شول او په مهمو قضاياوو کې يې درک او فهم پراخه شو او په عين وخت کې د امت ډېرو کسانو په شرعي علومو کې خپل کمال ته ورسيدل په خاصه توګه د سياست او اقتصاد په برخه کې که څه هم په پيل کې دا څېړنې ډېرې تخصصي او دقيقې نه وي

مګر د امت په ډېرو طبقو کې خپور شول .

ددې نیمګړتیا پوره کول پر مونږ ټولو فرض دي تر څو خپل کوښښ زیات کړو :هغه که علماء دي ، طالب علم دي ، د الله لورې ته بلونکي داعیان او استفاده کوونکي دي ، تر څو دغه پراخه او په لویه کچه فکري خطرناکه قضیه کوم چې د کفارو لخوا د مسلمانانو فکرونو ته نقل شوې ده او په عین وخت یې د بقاء لپاره د هر ډول اسبابو کارولو هڅه کوي مخنیوی وشي.

په اوس وخت کې د اسلام د سیاسي فقه او د اسلام د اقتصادي فقه په قضایاوو کې ځانګړې کتابونه شته مونږ باید د استفاده کوونکو شمیر زیات کړو ، مسلمانانو ته یې په داسې طریقه ورسوو چې واضح وي د هغوی د سوېې او کلتور موافق وي تر څو هغوی په آسانه توګه استفاده ورڅخه وکړې څو دوی ته لاره واضح شي او ګټه ترې واخلي څو مسلمان پخپل هدف پوه شي او د قدم ایښودلو ځای وپېژني .

په اسلامي هیوادونو کې په عقائدو او نورو برخو کې ګمراه او منحرف (کاږه) مذاهب خپاره شوي لکه څنګه مو چې مخکې اشاره ورته وکړه چې یو د هغه څخه «دیموکراسي » ده کوم چې د دین د حقیقت څخه د ناپوهۍ تر سیوري لاندې یې په اسلامي هیوادونو کې نفوذ کړی تر دې چې د «دیموکراسۍ» لفظ یې تر لاسه او په معنوي لحاظ یې له مسلمانانو څخه

مدد كوونكي ، د هغه لورې ته بلونكي، د هغه لپاره مبارزه كوونكي پيدا كړي.

نو دا ديموكراسي څه ده ؟ او د هغې په اړه د اسلام موقف څه دی ؟

دا هغه څه دي چې د الله تعالی په مرسته به په راتلونكو پاڼو كې د هغه ځواب وركولو هڅه وكړم ، د لوړ او قادر الله نه غواړم چې ماته د دغه قضيه د شامل ، واضح ، دقيق او آسانه چې د دغه ګمراه او منحرف مذهب كشف او بيان پكې وي توفيق راكړي .

دا رساله په دريو فصلونو كې ترتيب شوې ده :

لومړی فصل : د ديموكراسۍ تعريف او د هغه عملي لارې .

دوهم فصل : د ديموكراسي نظام اركان او ځانګړتياوې .

دريم فصل : د ديموكراسۍ سره څو جلسات .

او دا رساله د «حقيقة الديمقراطية» په نامه نومول شوې ده .

او په پای كې د الله تبارک و تعالی څخه سوال كوم چې دا رنګه كتابونه ماته او مسلمانانو ته ګټور وګرځوي او خاص د الله تعالی د رضا سبب يې وګرځوي ، هغه (الله) چې سخي او زيات بښونكی دی .

محمد شاكر الشريف

# لومړی فصل

## د ديموکراسۍ تعريف او د هغه د عملي طريقو څېړنه

### ديموکراسي څه شی ده ؟

زمونږ عادت دا دی واقعاً چې دا يو ښه عادت دی چې دا حرص او علاقه لرو څو هغه کلمات چې عربي نه وي اصلي معنی يې وپيژنو او د هغې کلمې د را وتلو اصلي ځای وپيژنو تر څو مونږ د هغو ژباړونکو په دوکه او فريب کې اخته نشو چې د خپل هوا ، شهوت او شبهې له مخې يې د اجنبي (پرديو) اصطلاحاتو د معنی تحريف کړی وي او بيا يې خلکو ته د دوکې او فريب په جامه کې وړاندې کړي وي چې د خاصو کسانو پرته له نورو خلکو څخه يې معنی پټه وي او ډير کم ورباندې پوهيږي ددې لپاره تر څو دغه اجنبي (پردي)اصطلاحات په مسلمانانو کې رواج کړي.

نو اصل د دغه کلمې څه دی او حقيقې معنی يې څه ده ؟

په قاموسونو او کتابونو کې مې چې لټون وکړ نو زياتو مراجعو کې راغلی وو چې ديموکراسۍ اصلاً يوناني کلمه ده چې له دوو برخو جوړه شوې :

اول : ديموس په معنې د خلکو او يا ملت

دوهم : كراتوس ، حكم يا حكومت[1]

نو ديموكراسي له دوو كلمو څخه جوړه شوې (خلک او حكومت ) يعنې د خلكو حكومت ، يعنې ديموكراسي داسې يو سلطنت او حكومت دی چې په هغه كې د شرع او قانون جوړولو حق خلكو او يا ملت يا د خلكو اكثريت لره دی .

## ديموكراسي د پرون او نن ترمنځ

كله چې د خلكو حكم د خلكو لپاره شو نو دا يې ستر خصيصوالی او بدوالی دی كوم چې ديموكراتان يې يادوي ، پخوانی او اوسنی تاريخ په دې باندې دلالت كوي چې دغه پورته بيان شوی خصيص عمل هيڅكله د ديموكراسۍ په تاريخ كې نه دی عملي شوی بلكي د ديموكراسۍ نظام هميشه طبقاتي پاتې شوی دی ، چې ټولنه يوازې د يوې طبقې په واک او انحصار (محاصره) كې پاتې شوې ده .

**په پخواني عصر كې** : د يونانيانو په نزد - د قوم مشران ، ملكان او اشرافو د حكومت ، سلطنت او قانون جوړولو صلاحيت لرلو او ددې څخه پرته اكثريت خلكو د هيڅ شي واک نه لرلو [2].

---

[1]- كچېرې غواړئ په دې باره كې نور معلومات تر لاسه كړی نو «الديمقراطية و موقف الاسلام منها » كتاب صفحه ۱۷ ولولئ او همدارنګه څېرونكې د ديموكراسۍ پيژندلو په اړه نور مراجع هم ذكر كړي دي .

[2]- وګورئ «المبادئ الاساسي في القانون الدستوري » ص ۱۴۹ .

**په اوس عصر کې** : مالداره خلک د واک ، حکم او سطلنت ، قانون او ارادې خاوندان دي هغه کسان چې ګوندونه لري ، مالي ، تبليغاتي او نور وسائل لري ، يعنې واک او سلطنت او قانون جوړول د مالدارې او کپيټليزم طبقې په واک او اختيار کې دی او نور خلک ددې هيڅ واک نلري[٣].

نو واضح شوه چې ديموکراسي د خلکو او ملت حکومت نه دی بلکې دا د يوې وړې طبقې چې (مالدار او بدمعاشان دي) حکومت او سلطنت دی او څنګه چې د ديموکراسۍ تعريف دی او د ډېرو خلکو ګمان دی د خلکو او ملت يا اکثريت حکومت نه دی.

**په عمل کې د ديموکراسۍ د طريقو او ميتدونو څېړنه**

ديموکراسي لکه مخکې مو چې وويل : « د خلکو حکم دی د خلکو لپاره » او د ژوند په اکثرو برخو کې يې همدا طريقه ده او دا چې د خلکو حکم د خپل ځان په هلکه څنګه دی صورتونه يې په لاندې ډول دي:

**١- مستقيمه ديموکراسي :**

دا د ديموکراسۍ پخوانی شکل دی چې په ټولو چارو کې ټول حکم خلکو لره وي پرته له کومې واسطې لکه په قانوني ، تنفيذي او قضايي چارو

[٣]- وګورئ «الحرية رأي » ص ٨٩ .

کې چې دا کار ډیر سخت دی او ددې تصور نشي کیدای چې په ټولو چارو او مسائلو کې دې خلکو ته احتیاج وي مګر دا چې د هغوی څخه څه محدود خلک وي نو ځکه دا ډول سلطنت په معاصر وخت کې شتون نلري .

**۲- نیابتي دیموکراسي :**

دا ډول دیموکراسي د پخوانۍ سره فرق لري چې په دغه ډول دیموکراسۍ کې خلک خپل نمایندګان ټاکي چې هغه ته «پارلمان» وایي او دغه «پارلمان» د ټولو چارو د قانون جوړونې صلاحیت لري او خلک پکې مداخله نه کوي مګر یوازې یو ځل هغه وخت چې کله خپل نماینده ګان ټاکي .

**۳- مستقیمې ته ورته دیموکراسي :**

دا ډول د مستقیمې او نیابتي دیموکراسۍ تطبیقي او عملي شکل دی چې په دې کې د نماینده ګانو هیئت موجود وي لکه : نیابتي دیموکراسي او په عین وخت کې خلک او ملت د ځان لپاره د ځنو چارو واک هم لري پرته له کومې واسطې څخه لکه په مستقیمه دیموکراسۍ کې .

دا وو د دیموکراسۍ درې عمومي صورتونه چې کله بیا په عمل کې د یو هیواد یا اقلیم له بل سره فرق کوي چې داسې کیدای شي او څه عجیبه

نه ده مګر ټول د بشري افكارو او تصوراتو نتيجه ده[٤] .

كه څه هم د ديموكراسۍ علمبردارانو په ديموكراسۍ باندې ډېر انتقادات كړي دي او د هغې يې ډېر عيبونه بيان كړي ، زه هغه دلته نه بيانوو بلكي د ديموكراسۍ اصل او بنسټ د شريعت له مخې بيانوو او بيا په هغه باندې حكم كوو .

[٤] - وګورئ «الدراسة في منهاج الاسلام السياسي » ص ٢١ .

# دوهم فصل

## د ديموكراسۍ د نظام بنسيټيزې ځانګړتياوې

د ديموكراسۍ د نظام لپاره څه اساسي او بنسټيزې ځانګړتياوې دي چې د هغه پرته نه قائمیږي او په هر نظام کې چې دا ځانګړتياوې نه وي نو هغه نظام به د ديموكراسۍ خلاف وي چې د هغه بنسټيزې ځانګړتياوې دوه شيان دي :

۱- حکم به د خلکو وي .

۲- د افرادو په حقوقو او آزادۍ باندې اقرار کول.

**اول : د سيادت او حاکميت نظريه :**

د سيادت د اصطلاح څخه په سياسي نظام کې مطلب څه دی ؟

سيادت : د سيادت څخه مطلب هغه لوړ واک او سلطه ده چې ځان ته د تشريع يا قانون جوړولو مطلق حق ورکوي او تر ځان پورته کومه بله مرجع نه پیژني .

يعنې داسې واک او سلطه ده چې ځان تر ټولو لوړ ګڼې او ځان د ټولو لپاره د أمر او منعې واک دار ګڼې[٥] .

---

[٥]- الحاكم و اصول الحكم ص ٦٩ .

**په ديموكراسۍ كې سيادت يا حكم چا لره وي ؟**

دلته يو سوال را منځته كيږي : چې د سيادت يا حكم خاوند څوک دی ؟ د هغه لوړ واک خاوند څوک دی چې د قانون جوړولو ، أمر او نهی واک لري او تر ټولو واکونو لوړ دی ؟

ددې سوال ځواب  د ديموكراسۍ تنظيم كوونكو په ښكاره ټوګه كړی چې : د ملت او خلكو په ټولو چارو كې حكم خلكو لره دی لكه : لاندې چارې :

الف : د تشريع صلاحيت : داسې چې د شرع ټول احكام او قوانين په هغه كې تغيرات راوستل او يا له مينځه وړل.

ب : تنفيذي صلاحيت : د قانون تطبيق هغه كه عام وي او يا د خلكو د اداري كولو .

ج: قضايي صلاحيت : د قضاء او حل فصل لپاره چې څوک دوی ته مراجعه كوي د هغه احكامو او قوانينو ترتيب .

پس خلک او يا ملت د ټولو چارو اصلي مصدر دی هغه كه د قانون جوړول دي ، قضاء او يا د هغه تطبيق دی ددې ټولو صلاحيت خلكو لره دی ، يعني د خلكو حكم د خلكو لپاره .

يعني د ديموكراسۍ اساسي فكري مبدأ او ددې نظام د ملا تير او بنسيز

ركن د خلكو حكم دى كله چې مونږ يو شى د هغه په يوه برخه يا يو ركن سره پېژنو نو دا د هغه په ستروالي او اهميت دلالت كوي[٦]،يعني په كامله توګه د آسماني دين او وحى څخه انكار كوي او د شريعت او قانون جوړولو مبدأ او بنست خپله انسان ګڼي .

**د ديموكراسي نظام اصلي او حقيقي نوم څه دى ؟**

ددې سوال د ځواب مخكې دا ويل پكار دي چې: مونږ ټول د اسلام د دين په مفهوم پوهيږو چې اسلام هغه دين دى چې د الله تعالى په خالص توحيد باندې ولاړ دى نو ځواب اسانه دى بحث ته ضرورت نشته او په دغو (تش په نوم ) دوكه وركونكو نارو او شعارونو حق نشي پټيدلاى بلكې ددې ډول نظام حكم د روڼ لمر پشان واضح دى .

نو برابره خبره ده كه د ديموكراسۍ نظام د خلكو او اكثريت وي او يا د يوې طبقې وي ، مستقيم وي او يا نيابتي وي په اسلام كې يې په واضح او څرګند ډول نوم يو دى چې هغه د طاغوت حكم دى .[٧]

---

[٦]- مثلاً په حديث شريف كې راغلي :«الحج عرفة» او ښكاره خبره ده چې په حج كې د عرفې پرته ډير نور اعمال دي نو كله چې مونږ حج د عرفې په يو جز سره پيژنو نو دا د عرفې په عظمت او اهميت دلالت كوي .

[٧]- د ظاغوت حكم : د جاهليت حكم دى ، هر هغه حكم چې د الله او د هغه رسول د حكم مخالف وي طاغوت بلل كيږي ، او يا د طاغوت څخه مطلب شيطان دى د ګمراهۍ لارې ته دعوت ، ابن كثير وايي : له عمر بن الخطاب رضى الله عنه څخه روايت نقل شوى دى چې : طاغوت عبارت له قوي شيطان څخه دى او شامليږي هر هغه شر لره كوم چې د جاهليت د خلكو وو لكه : د بتانو عبادت او د هغو نه مرسته او عيانت غوښتل او د هغوى محاكم (تفسير ابن كثير :٣١٩/١ ) .

د قرآن او سنتو ټول ثابت نصوص په دې باندې دلالت کوي چې نظامونه دوه ډوله دي :

١- شرعي نظام .

٢- طاغوتي نظام .

## شرعي نظام

هغه نظام دی چې د الله تعالی کلمه پکې لوړه وي هغه ذات چې ژوندي کول او مړه کول کوي ، او د شرع ، تحليل ، تحريم ، أمر او نهی حکم هغه الله تعالی لره دی چې د ځکمو او آسمانونو مالک او واکدار دی دا که فرد وي اويا خلک او ټولنه وي ، په دې کار کې به د الله تعالی سره هيڅ ډول شی نه شريکوي بلکي د هغه پيروي به کوي .

او دا د لمر په شان واضح حقيقت دی او هر مسلمان په دې باندې عقيده لري چې «لا اله الا الله محمداً رسول الله » او ددې کلمې يوه معنی دا ده چې حکم به يوازې الله تعالی لره وي او په دې باره کې ډېر شرعي دلائل راغلی دي :

---

او ابن قيم رحمه الله وايي : طاغوت : ټول هغه څه چې يو بنده د خپل معبود په حد کې تيری کوي ، پس هر هغه قوم او ډله چې د الله او د رسول (اسلامي شريعت ) پرته پر بل څه باندې فيصلې کوي او يا د الله تعالی پرته د بل چا عبادت کوي او په پټو سترګو د الله تعالی پرته د بل چا فرمامبرداري کوي طاغوت بلل کيږي (اعلام الموقعين :٥٢/١ ).

الله تعالی فرمايي : [إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ] چې دا د مختصر اسلوبو څخه دی ، يعني حکم نشته مګر يوازې الله لره ( د شرع ، قانون ، حلال ، حرام ، أمر او منع حکم يوازې الله تعالی لره دی ، يوازې د الله تعالی لخوا رالیږل شوی اسلامي شريعت دی) .

الله تبارک و تعالی د قرآن کريم په ډيرو ځايونو کې دا بيان کړی دی په سوره يوسف کې د يوسف عليه السلام په ژبه کله چې دی د زندان ملګري ته دعوت ورکوي ، او همدارنګه په سوره يوسف کې د يعقوب عليه السلام په ژبه کله چې دی د يوسف له ورکيدو وروسته خپلو ځامنو ته وصيت کوي او همدارنګه د انعام په سورت کې يې خپل رسول محمد صلى الله عليه وسلم ته په همدې باندې أمر کړی چې د دليل په توګه يې مشرکينو ته ووايي .

او همدې ورته لنډ اسلوب سره الله تعالی فرمايي :[ أَلاَ لَهُ الْحُكْمُ] د قرآن په ډيرو ځايونو کې راغلی دی لکه : په سوره قصص دوه ځايه ، په سوره الانعام کې يو ځل او همدارنګه فرمايي: [أن الحكم لا يكون الا لله ) .

او الله تعالى د أمر ، نهى او تشريع حق د هغه تعالى بيان کړى دى : [أَلاَ لَهُ الْخَلْقُ وَالأَمْرُ][8] .

او الله تعالى په شرع باندې حکم فرض ګرځولى دى : [وَأَنِ احْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ اللّهُ][9] .

او د نزاغ او اختلاف حل او فصل په اسلامي شريعت باندې فرض دي :[وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ][10] .

او الله تعالى په حکم (شرع ، تحليل ، تحريم ، أمر او نهى کې ) ددې څخه منع فرمايلې چې هيڅ څوک به نه ور سره شريکوئ :[ وَلاَ يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا][11] .

او الله تعالى د هغه حکم خاص کړى دى او هيڅ څوک د هغه لري کولو ، ترک کولو او شاته کولو واک نلري :[ وَاللّهُ يَحْكُمُ لاَ مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ][12] .

دغه دلائل او نور ډير دلائل په دې باندې دلالت کوي چې شرع ، حلال ګرځول ، حرام ګرځول ، أمر او منع ټول الله واحد القهار لره دي او دا د اسلامي نظام شان دى کوم چې الله تعالى ته خوښ دى او د دغه نظام

---

[8]- سوره الاعراف : ۵۴ .
[9]- سوره المائده : ۴۹ .
[10]- سوره الشورى : ۱۰ .
[11]- سوره الکهف : ۲۶ .
[12]- سوره الرعد : ۴۱ .

د ټينګوونکو او پلي کوونکو سره يې په دارينو کې د نصرت ، عزت ، کرامت او فلاح او کاميابۍ د نعمت وعده کړې ده .

## طاغوتي نظام

طاغوتي نظام هغه نظام دى چې أمر ، نهى او شرع ټول غير الله لره وي او يا ځني اوامر او نواهي الله لره وي او ځني غير الله لره وي برابره خبره ده که د فرد په سطحه وي يا د خلکو او يا هم د يو ملت .

نو واضح شوه چې د ديموکراسي نظام د طاغوتي نظام يو ډول دى ، او دا معلومه او مشهوره خبره ده چې ايمان نشي تجزيه کيداى او اسلام تر هغه پورې سالم او کامل اسلام نه دى څو پورې چې سړى د طاغوت په کفر باندې ايمان و نه لري ، ځکه چې پر الله تعالى باندې ايمان لرل او په طاغوت باندې ايمان لرل او د طاغوت د حکم قبلول او په هغه باندې خوښ او راضي کيدل هيڅکله نشي جمع کيداى .

الله سبحانه وتعالى د طاغوت کفر ګڼل فرض ګرځولى :[ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىَ لاَ انفِصَامَ لَهَا][١٣] .

ژباړه: نو چا چې له طاغوت نه انکار وکړ او په الله يې ايمان راوړ، نو يقينًا ده ډېره مضبوطه کړۍ ټينګه ونيوله، چې هغې لره هېڅ پرېکېدل

---

[١٣]- سوره البقره :٢٥٦ .

نشته.

او الله سبحانه وتعالی په هغو کسانو باندې رد کړی چې ادعا د ايمان کوي خو خپلې فيصلې پر طاغوت کوي ( ادعا د ايمان خو قانون يې طاغوت وي) .

[أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُواْ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُواْ إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُواْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلاَلاً بَعِيدًا][١٤] .

ژباړه: آيا هغو کسانو ته دې نه کتلي چې ګمان کوي چې دوی پر هغه څه چې پر تا او تر تا پخوا کسانو باندې نازل شوي دي ايمان لري؟ حال چې غواړي (خپلې پرېکړو او فيصلو) واک طاغوت ته وسپاري په داسې حال کې چې حکم ور ته شوی دی چې د شيطان له پيروی څخه ډډه وکړئ شيطان غواړي چې ډير زيات يې بې لارې کړي .

**نو واضح شوه چې په ديموکراسۍ نظام باندې کفر واجب دی** (د هغه کفر ګڼل واجب دي )

او د هغو کسان درواغ هم معلوم او ښکاره شول چې دوی په الله تعالی او هغه څه چې د الله تعالی په رسول صلی الله عليه وسلم باندې نازل شوي دي د ايمان ادعا کوي او په عين وخت کې د ديموکراسۍ په نظام

---

[١٤]- سوره النسآء :٦٠ .

باندې هم ايمان لري هغه قبلوي او په هغه باندې خوښ وي .

ځکه چې د «مسلم» لفظ او د «ديموکراسۍ » چې يو د بل مخالف او يو د بل ماتوونکي دي په يو کس کې نشي جمع کيدای نو دا کسان د اسلام د حقانيت څخه نا خبره دي کوم چې د الله تعالی په خالص توحيد سره بنا شوی دی او هر ډول شرک پکې رد شوی دی او همدارنګه دا کسان د ديموکراسۍ له حقيقت څخه نا خبره دي چې کفر دی او د الله واحد القهار سره لوی شرک دی .

**دوهم : آزادي**

د ديموکراسۍ لومړی رکن مو بيان کړ چې د قانون ، شرع ، تحليل او تحريم صلاحيت به بشر لره وي او دوهم رکن يې آزادي او په څه حقوقو باندې اقرار دی .

د ديموکراسۍ په نظام کې شخصي ازادي ده لکه : د عقيدې آزادي ، د نظر او بيان آزادي ، د اخلاقو آزادي ، د اقتصاد ازادي او نور او همدارنګه په څه حقوقو باندې اقرار کوي لکه : د ملکيت حق ، د استوګنې حق او د انتقال او تعليم حق او نور .

که څه هم دا د استبدادي نظام مخالفت دی کوم چې د دغو شيانو څخه انکار کوي او له بلې خوا هغه کسان چې د ديموکراسۍ د آزادۍ

ناري وهي د اسلامي نظام او همدارنګه د دغه آزادئ له اصلي څهرې او ناوړه اثارو څخه نا خبره دي او ددې دوه سببونه دي :

الف : په ډيرو اسلامي هيوادونو باندې ظالم طاغوتي حکومتونه واکمن دي چې نه د چا حق پيژني او نه هم امن او د هغو کسانو پر ضد سخت ظالمانه برخورد کوي کوم چې د دوى د فکر او رأى مخالف وي او يا هم د خپل مشروع حق چې اسلامي نظام دى غوښتونکي وي .

ب : د ديموکراسئ د آزادئ د ناخوالو ، نتايجو او آثارو څخه نا خبره وي .

اوس تاسې ته د دغه آزادئ ځنې ناوړه اثار او نتايج بيانوو :

**١- د دين او عقيدې آزادي :**

په ديموکراسئ کې هر څوک حق لري چې خپل دين او فکر پرته له ادنى قيد څخه تغير کړي فرق نه کوي که هغه الهي دين وي او يا کوم د بشر او باطل دين .

دا د هر کس مطلق حق دى چې هيڅ خاصوالى او ادنى قيد هم پکې نشته کچېرې څوک وغواړي هره ورځ هم خپله پخوانى عقيده بدلولاى شي .

ددې حق په ورکولو سره د ارتداد د جرم او حد څخه انکار دى .

مونږ وينو په هغو عربي هيوادونو کې چې د ديموكراسۍ شعار پورته کوي کله چې کوم نماينده پارلمان ته د ارتداد د حد موضوع وړاندې کړي نو په ميډيا او رسنيو کې به د هغه پر ضد باندې شور او غوغا وکوروئ او حتى د کپيټليزم علماء به هم ورسره کډ وي .

پس د ديموكراسۍ د عقيدې آزادي د هغه څه پر وړاندې مخالفت دى کوم چې حکيم او خبير ذات لخوا قانون ټاکل شوى دى چې هغه د ارتداد سزا ده .

په ديموكراسي نظام کې مسلم ته د عقيدې د آزادۍ څخه د هغوى مقصد دا دى تر څو په خلاص مټ خپل برحق دين پرېږدي ، يهوديت ، مسيحيت او بل دين ته واوړي او مسلم ته يوازې دومره اعتقادي حق ورکول کيږي چې پر الله تعالى به ايمان لري او شخصي عبادات به تر سره کوي مګر د نورو شرعي احکامو د تطبيق حق نه ورکول کيږي لکه : سياست ، معاملات ، ټولنيز مصالح او نور .

او د ديموكراسۍ تر سيوري لاندې په مسلمان باندې لازمه ده چې وضعي نظام (ديموكراسۍ ) ته خپل سر ټيټ کړي او هغه ومني .

حال دا چې اسلام شامل دين دى په مسلمان باندې لازمه ده چې د ژوند

په ټولو چارو کې دين عملي کړي [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ ادْخُلُواْ فِي السِّلْمِ كَآفَّةً وَلاَ تَتَّبِعُواْ خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ][١٥] .

ژباړه: اې مؤمنانو! په اسلام کې پوره پوره داخل شئ او د شيطان په قدمونو پسې مه ځئ، يقينًا هغه ستاسو ښکاره دښمن دی.

پس دا خبره کاملاً باطله ده چې په ديموکراسۍ کې د اعتقاد آزادي ده ، ددې آزادۍ څخه مقصد يوازې کفر او الحاد دی او د اسلام پر ضد يوه دسيسه ده .

کچېرې مسلمان ته د اعتقادي ازادۍ حق ورکړ شي نو هر رښتنی مسلمان اسلامي نظام غواړي ولې هغوی ته خپل حق نه ورکوي ؟

او کله چې پر کوم اسلامي هيواد کې اسلامي نظام جوړ شي ولې د ديموکراسۍ علمبرداران د هغه مخالفت کوي ؟ نو معلومه شوه چې دا آزادي د اسلام پر ضد د کفر دسيسه ده .

**٢- اخلاقي ازادي :**

د ديموکراسۍ په نظام کې هر ډول خباثت ، رزاېلو او بد اخلاقۍ ته مطلقه آزادي ورکول شوې ده .

زنا د هغوی حق دی ، په عامو لارو او کوڅو کې بې شرمه افعال د

[١٥]- سوره البقره :٢٠٨ .

هغوی حق دی ، لواطت او د هغوی په اصطلاح کې همجنس بازي د هغوی حق دی او ځنې کسانو ته به دا مبالغه ښکاري راځئ چې حقيقت ووينو :

استاد محمد قطب وايي : په ديموکراسۍ کې هر ډول جنسي فعل هغه که ځوان او ځوانې سره وي يا د واده شوې سره وي قانوني جرم نه بلل کيږي مګر يوازې په هغه حالت کې چې د طرفينو په اتفاق نه وي بلکي په زور او اکراه سره وي .

کورونه او نورو د ننه ځايونه خو يې ټول په فساد لړل شوي دي خو هغه څه چې په عام محضر کې تر سره کيږي ځنې مثالونه يې دا دی :

څه کلونه پخوا د هالنډ په يوه کليسا کې د قشيش (مذهبي مشر) په لاس باندې د يوې ښځې نکاح د بلې ښځې سره وتړل شوه او همداسې د يو نارينه نکاح د بل نارينه سره تړل کيږي .

او کلونه مخکې د انګليس پارلمان د جنسي تيريو په اړه نظر ورکړ خو د وخت رئيس جمهور (کانتربري) دا خبره رد کړ او ويې ويل : جنسي علاقې د هغوی حق دی او په دې کې مداخله کول نه ښايي .

او همداسې کلونه مخکې د بريطانيا د يو تلويزيون لخوا جنسي محاوره نمايش ته وړاندې شوه چې لسو نجونو په هغه کې برخه لرله او د

هغوی ځخه د جنسي تعامل په اړه پوښتنې کيدلې او نجونو به په ښکاره توګه ځواب ورکولو چې هيڅ قدرې فطري حيا به پکې نه وه [16]

او د امريکا په تلويزيون کې حتی د جنسي علاقو عملي تصويرونه او ويديوګانې خلکو ته ښودل کيږي او ځوانې ښځې پخپله د هغه بيان کوي چې هيڅ فطري حيا هم پکې نه وي.

د امريکې پارلمان په (۲۰۱۱) کال د همجنس بازۍ قانون تصويب کړ داسې چې:( نارينه له نارينه سره او ښځه له ښځې سره واده او جنسي تعامل کولای شي ) چې دا کار په حيواناتو کې هم وجود نلري خو د طاغوت علمبرداران يې خپل حق او آزادي بولي .

او دا عمل لومړی د لوط عليه السلام په قوم کې رواج شو چې الله تعالی په سخت عذاب برباد او د ځمکې له مخ ځخه يې ورک کړل .

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[ فَلَمَّا جَاء أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ][17]

ژباړه : نو کله چې زمونږ فرمان راغی ، د هغوی (کورونه ) مو پر بل مخ نسکور کړل او پر دوی مو د پخو ختو د تيږو باران واوراوه .

دا د يموکراسۍ د نظام يو نقل شوی تصوير دی ، نړی ستاسې په

[16]- مذاهب فکري معاصره ص ۲۱۶ .
[17]- سوره هود :۸۰- ۸۲ .

مخکې ده او ټول عالم وينئ چې د هر ډول قيدونو پرته آزادي پکې ده او په هيڅ نظام کې به داسې آزادي نه وي لکه د ديموکراسۍ په نظام کې د هر ډول اخلاقي قيدونو څخه پرته جنسي آزادي ،په دې پوهيدل پکار دي چې ديموکراسي دوه ډوله ده : غربي کوم چې غربي کپيټليزم هيوادونو کې ده او بله شرقي کوم چې کمونستي هيوادونو کې د تطبيق وړ ده دغو دواړو په آزاديو کې زيات فرق دی مګر په جنسي آزادۍ کې دواړه موافق دي .

او دلته تاسې ته د يوه عربي هيواد چې د ډيموکراسۍ شعار پورته کوي د قانون يوه ماده بيانوم :

"لا يعاقب القانون على جريمة هتک العرض ، اذا ما كانت الفتادة بالغة ، تم الفعل برضاها"

يعني : د بالغې نجلۍ سره چې رضا او خوښه يې وي جنسي فعل قانوني جرم نه بلل کيږي .

همدارنګه د کابل اوسنی رژيم چې ځان د ديموکراسۍ علمبردار بولي د قانون منع خشونت عليه زنان په (دريمه ماده) کې ليکي :

تجاوز جنسی: ارتکاب فعل زنا يا لواط بازن بالغ توام با اجبار و اکراه يا ارتکاب آن با زن نابالغ و يا تجاوز بر عفت وناموس زن است.

لعنت د په دي قانون شه .

زنا د شرک څخه وروسته ستره ګناه ده چې د دنيا او آخرت خطرناکې پايلې يې په لاندې ډول دي :

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَالَّذِينَ لا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا ءَاخَرَ وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ وَلا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ، يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا][١٨] .

ژباړه : او هغه خلك چې نه بولي له الله پرته بل معبود او څوک نه وژني هغه چې حرام کړى الله مګر په حق سره ، او نه کوي زنا او څوک چې دا کار وکړي نو هغه ښکيل شو په ګناه کې دوه چنده به وي هغه لره عذاب په ورځ د قيامت او پروت به وي په هغه عذاب کې سپک شوى .

په زاني کې د زنا په وخت ايمان نه وي:

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ »[١٩]

ژباړه: زنا کار د زنا د عمل د ارتکاب په وخت کې مؤمن نه دى .

او فرمايي: «إِذَا زَنَى الرَّجُلُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ كَانَ عَلَيْهِ كَالظُّلَّةِ ، فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ »[٢٠]

[١٨]- سوره الفرقان :٦٨-٦٩ .
[١٩]- رواه البخاري (٢٤٧٥) ومسلم (٥٧) .
[٢٠]- رواه أبو داود (٤٦٩٠) والترمذي (٢٦٢٥).

ژباړه: کله چې يو کس زنا کوي د هغه څخه ايمان وځي او د وريځې په شان ( د هغه د پاسه دريږي ) کله چې (ددې پليت ) عمل څخه خلاص شي ايمان دوباره ورګرځي .

«وأخبر صلى الله عليه وسلم عن عذاب الزناة في القبر ، وأنهم يعذبون بالنار»[21].

او رسول الله صلى الله عليه وسلم په قبر د زناکارو د عذاب په اړه خبر ورکوي چې هغوی ته به په اور سره عذاب ورکول کيږي .

د زناکار عمر لنډ او په ژوند کې محتاج وي :

تفسير انوار القرآن د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث نقل کړی دی چې فرمايي : «يا معشر الناس! اتقوا الزني، فإن فيه ست خصال: ثلاث في الدنيا وثلاث في الآخرة، أما التي في الدنيا، فيذهب البهاء ويورث الفقر وينقص العمر، وأما التي في الآخرة: فسخط الله سبحانه وتعالي، وسوء الحساب وعذاب النار:

ژباړه: ای ډلې د خلکو ! د زنا څخه ځان وساتئ ځکه په هغه کې شپږ خصلتونه دي درې په دنيا کې او درې په آخرت کې ، هغه چې په دنيا کې دي دا دي : زنا د انسان اعتبار او جمال له مينځه وړي ، فقر را منځته کوي او عمر کموي ، او کوم چې په آخرت کې دي هغه دا دي: د الله قهر او عضب ، بد حساب او د دوزخ عذاب دي.

[21]- رواه البخاري (١٣٢٠) .

**زناکاربه د اور په تنور کې پراته وي**

الله تعالی خپل نبی صلی الله علیه وسلم ته د وحی په وسیله د زناکارو حال ښيي چې: «فَانْطَلَقْنَا إِلَى ثَقْبٍ مِثْلِ التَّنُّورِ، أَعْلاهُ ضَيِّقٌ وَأَسْفَلُهُ وَاسِعٌ، يَتَوَقَّدُ تَحْتَهُ نَارًا، فَإِذَا اقْتَرَبَ ارْتَفَعُوا، حَتَّى كَادَ أَنْ يَخْرُجُوا، فَإِذَا خَمَدَتْ رَجَعُوا فِيهَا، وَفِيهَا رِجَالٌ وَنِسَاءٌ عُرَاةٌ ... وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي الثَّقْبِ فَهُمُ الزُّنَاةُ»[٢٢]

ژباړه : د یوه خندق له څنک څخه تیر شوو چې د تنور په شان وو ، خوله یې تنګه او داخل یې ډیر پراخه وو ، د هغه د لاندې حصه کې اور بل وو ، په دغه خندق کې ځنې لپ لغړ نارینه او ښځې وو ، کله به چې اور لمبه ووهله هغوی به پورته شول داسې چې نږدې وو له خندق نه ووځي او کله به چې اور مړ شو دوی به د لاندې تلل و مې پوښتل دا څوک دي ؟ ( پریشتو ) را ته وویل : کوم کسان دي چې لوڅ په خندق کې ولیدل زناکاران وو.

زنا د پورته دنیوي او اخروي عذابونو سربیره د روغتیایي عذابونو او خطرناکو امراض سبب هم ګرځي لکه : د آیډز (Aids) وژونکی مرض ، د (Gonorrhea،Syphilis ) په نوم خطرناک انتاني نارغیو انتقال او د هر ډول جنسي امراضو (Venereal) انتقال .

---

[٢٢]- رواه البخاري : ١٣٨٦ .

**۳- اقتصادي آزادي :**

د ديموکراسۍ اقتصادي نظام پر فردي مذهب باندې ولاړ دی چې هر شخص ته حق ورکړ شوی چې د کوم قيد او اخلاقو پرته څنګه چې غواړي خپل مال او ثروت زيات کړي .

سود ، احتکار او نور حرام کسبونه د دوی په نزد د مال د پيدا کولو شريف او رواه کسبونه دي او همدارنګه هر څوک کولای شي پخپله خوښه خپل مال په فساد او رذايلو کې مصرف کړي ، د ټولنې او ماحول لپاره هيڅ ډول مصالح په نظر کې نلري .

د مالدار په مال کې د فقير او محتاج لپاره ادنی حق هم نشته او نه هم دولت کولای شي د خلکو په فردي اقتصاد کې مداخله وکړي بلکي د يو چوکيدار حيثيت لري .

پس د ديموکراسۍ تر سيورې لاندې فردي مذهب کې د اخلاقو او ښو اهدافو پرته د مال ډيرولو پوره آزادي ده او همدارنګه د انسان لپاره يې دا حق ورکړی دی چې د بې حساب مال په پيدا کولو کې کوښښ وکړي پرته له دې چې ټولنې او ماحول ته نظر وکړي ( که د ټولنې او ماحول ضرر هم پکې وي باک نلري کولای شي خپل مال ډير کړي ).

مګر په اسلامي شريعت کې د اقتصاد له بنسټونو څخه دا دي چې:

سود ، احتکار ، ظلم ، چل او فریب او غرر ټول پکې حرام دي ځکه دغه شیان ټولنې او خلکو ته لوی ضرر پیښوي .

او همدارنګه ټول هغه شیان چې اسلامي شریعت حرام کړي وي لکه : شراب ، د خوک غوښه ، پوډر او نور مضر شیان نو د هغه بیع او تجارت حرام دی .

د مثال په توګه سود عظیم جرم دی او الله تعالی د سود خورو پر وړاندې د جنګ اعلان کړی دی :

[ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ * فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللهِ وَرَسُولِهِ ][٢٣] .

ژباړه : ای مؤمنانو ! له الله تعالی نه ووېرېږئ ، که په رښتیا مؤمنان یاست کوم سود مو چې پر خلکو پاتې دی هغه پرېږدئ ، نو که (دا کار ) مو و نه کړ (سود خوړل مو پرې نه ښودل ) د الله تعالی او د هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خوا جګړې ته چمتو شئ.

همدارنګه اسلامي شریعت اسلامي حکومت ته دا صلاحیت ورکړی دی چې کچېرې یو کس خپل مال په فساد او لهو لعبو او بې کټې شیانو کې مصرفوي د هغه مخه به نیسي او مال به یې حَجر کیږي .

مګر د دیموکراسۍ په نظام کې سود ، قمار ، احتکار او هر څه حلال او جایز دي .

[٢٣]- سوره البقره .

او په ديموكراسي نظام كې مونږ وينو چې سودي بانكونه او مؤسسات په پوره ډاډ سره خپل فعاليت كوي ، د دولت لخوا جواز وركول كيږي ، د ضعف پر مهال د دولت لخوا تقويه كيږي او د دولت لخوا ماليات ورڅخه اخيستل كيږي او همداسې لكه مخكې مو چې وويل : هر څوک د مال په مصرف كې پوره آزاد دي .

**۴- د بيان آزادي :**

د ديموكراسۍ په نظام كې د بيان مطلقه آزادي ده ، داسې آزادي چې انسان څه غواړي هغه ويلای شي ، ښې خبرې وي او كه بدې خبرې ، د چا په ګټه وي او كه په زيان او يا د دين ، اشخاصو او قومونو سپكاوی پكې وي څه باک نلري ، ښه او بد ، ګټه او ضرر ، پاک او خبيث هيڅ وزن پكې نلري .

مګر په اسلامي شريعت كې د بيان آزادي ده خو مطلقه آزادي نه بلكې مقيده آزادي ، داسې آزادي چې هغه په شرعې اصولو ، ضوابطو او آدابو سره مقيده شوې ده تر څو د هغه په وجه د انسانان ژوند سالم او د خرابۍ ضرر ، اختلافاتو او دوښمنۍ څخه په امن وي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : « من كان يؤمن بالله و اليوم الآخر ، فليقل خيراً أو ليصمت » [٢٤]

ژباړه : څوک چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لري نو هغه به د خير خبرې كوي او يا به سكوت اوسي .

[٢٤]- رواه البخاري و مسلم .

او فرمايي :«ليس المؤمن بالطغان ، ولا باللعان ، ولا الفاحش، ولا البذيء»[٢٥]

ژباړه : مؤمن پيغور ورکوونکی ، لعنت ويوونکی ، بدو خبرو او بدکاره نه وي .

همدارنګه اسلامي شريعت په مجلس کې د دوو کسانو پټې خبرې او يا هم په اشارو او کنايه سره خبرې کول منع کړي دي تر څو د مجلس نورو کډونوالو ته زيان ونه رسيږي .

او غيبت ، بهتان او د بل کس سپکاوی يې حرام کړی دی ځکه په دې کې د نورو لپاره لوی ضرر او د دوښمنۍ سبب ګرځي .

**٥- د ټاکنې او انتخاب آزادي :**

د ديموکراسۍ په نظام کې د رئيس يا نمايده د ټاکنې لپاره د رأيو غلبه او کثرت شرط دی چې د دغه نظام په انتخاباتو کې لاندې مفاسد موجود دي:

- ✓ غلبه او کثرت :

د ديموکراسۍ په انتخاباتو کې کثرت او زيادت شرط دی که څه هم په دوکه او فريب سره وي اهليت پکې شرط نه دی ، د کافر ، مسلمان ، فاسق او فاجر، اهليت او غير اهليت واله هيڅ فرق پکې نشته .

[٢٥]- رواه أحمد ، الحاكم ، الترمذي .

حال دا چې په اسلامي نظام کې د امير د ټاکلو لپاره د اهليت د خاوندانو (علماوو ، متخصصينو او مشرانو ) د يوې شورى لخوا ټاکل کيږي چې د امير لپاره هم شرعي ضوابط ټاکل شوي دي .

✓ د شريعت اتهام :

د انتخاباتو عَلمبرداران وايي چې د ديموکراسۍ انتخابات د اصلاح وسيله ده چې په دې سره په اسلامي شريعت باندې د نقص اتهام لګوي.

✓ د الولاء او البراء د پولو نړول :

د ديموکراسۍ په انتخاباتو کې د «الولاء» او «البراء» [٢٦] پولې پکې نړول شوي دي د هر فاسق او فاجر څخه کار اخيستل او خپل ځان واک ته رسول دي .

✓ د کفر او الحاد قانون ته سر ټيټى :

ديموکراسي وضيعي طاغوتي نظام دى او انتخابات د دغه نظام وسيله ده چې اصلاً د طاغوت قانون ته تسليم او په هغه باندې راضي کيدل دي .

✓ ديموکراسۍ ته شرعي بڼه ورکول :

په اسلامي هيوادونو کې د انتخاباتو رواجول په اصل کې ديموکراسۍ ته شرعي بڼه ورکول دي .

✓ انتخابات د حرامو وسيله ده .

---

[٢٦]- الولاء : د متقيانو مرسته او مدد کول ، البراء : د اسلام دوښمنو ، فاسقانو څخه بيزاري .

انتخابات د طاغوتي نظام وسيله ده نو ځکه د حرامو وسيله ده .

- ✓ تعصب :

په انتخاباتو کې هر څوک د خپل ګوند ، خپل قوم او خپل سمت برى غواړي او د بل ګوند ، بل قوم او بل سمت لاندې کول يې مطلب وي چې په دې سره دا د نفاق او تعصب خبيثه خطرناکه وسيله ده .

- ✓ د وخت او مال ضايع کول :

هر نوماند د خپلې بريا لپاره اعلانات ، تبليغات ، ميلمستياوي او نور مصارف کوي خپل مال او خپل وخت ضايع کوي .

- ✓ غير شرعي مساوات :

په انتخاباتو کې متقي او فاسق ، کافر او مسلمان ، نارينه او ښځينه يو شان حيثيت لري ، حال دا چې په اسلامي شريعت کې فاسق او کافر هيڅکله په مسلمانانو مشري نشي کولای او همدارنګه ښځه د خپل فطري جوړښت په نظر کې نيولو سره اسلامي شريعت د امت د مشرۍ د دروند مسئوليت څخه معاف کړې ده .

- ✓ د درواغو وعدې .
- ✓ د ظلم او ګناه په کار کې مرسته :

په انتخاباتو کې برخه اخيستل اصلاً د ديموکراسۍ په ټولو مفاسدو او رذائلو کې مرسته او مدد کول دي .

**۶- د دولت په سطحه د ديموکراسۍ د نظام حال :**

د ديموكراسي نظام معاملات له خپل رعيت سره ډير زيات ضعيف دي چې نه پکې اخلاق شته ، نه امانت او نه هم عدل او نه د حق ورکول حال دا چې حق او آزادي د ديموكراسۍ اساسي شعار دی خو دا شيان پکې نشته .

مثلاً : هغه عربي هيوادونه چې د غربي هيوادونو تر استعمار لاندې دي او د هغوی خيرات خوري خو په مقابل كې يې ثروت لوټوي اولادونه يې ور وژني دا هغه دولتونه دي چې د ديموكراسۍ شعار پورته كوي نو كله په ديموكراسۍ كې امانت ، عدل ، حق او آزادي او نور چې دوی دعوی كوي شته ؟ بلكي نشته .

وګورئ همدا اوس څوک د يهودي دولت تر شا ولاړ دي چې په فلسطين او نورو هيوادونو كې مسلمانان وژني ، څوک هغوی ته سلاح وركوي تر څو مسلمانان ورباندې ووژني او ځمكې يې غصب كړي او څوک يې اقتصادي ملاتړ كوي آيا د ديموكراسۍ علمبرداران يې تر شاه نه دي ولاړ هغه كسان چې د ديموكراسۍ شعار پورته كوي.

## د سيادت د نظريې آساس او بنسټ

سيادت يعني حكم به خلكو لره وي چې د ديموكراسۍ بنسټيز ركن بلل كيږي چې بلاخره د الله تعالی په شرک نيولو پای ته رسيدلی اساس او بنسټ يې كفري الحاد دی چې لاندې مراحل يې طی كړي :

د سیادت نظریه لومړی د غرب په نصاراوو کې مینځه راغله کوم چې د منحرفې عقیدې او تحریف شوي شریعت پیروان وو ، د هغوی پاچاهانو او ملوکو ظلم او استبداد اختیار کړی وو او حاکمیت یې مطلق د ځان حق بللو چې کواکي دوی ته د الله تعالی د جانبه سپارل شوی دی هغوی به ویل : پاچاهان پخپل سلطنت او حاکمیت کې د دوی لپاره د الله نماینده ګان دي هغه که مستقیم وي او که غیر مستقیم، یعنې خپل ظلم او طغیان ته به یې دیني رنګ ورکولو .

او کلیساوو د نصارا په نزد د دین تمثیل نشو کولای ځکه په فساد ، انحراف او تحریف ککړې وې او په دې باندې نه توانیدې چې خلکو ته د حاکم وضیعت چې سراسر ظلم او طغیان وو د کومې صحي مرجع لارښوونه وکړي او دوی ته د حاکمانو د ظلم څخه نجات ورکړي .

یعنې په مستقیم او غیر مستقیم ډول اورپایي کلیساوې وې چې هغوی په خپل منسوخ شوي دین او تحریف عقائدو کې زیات خرافات ځای پر ځای کړي وو ، د علم او نویو حقائقو سره یې کرکه او مخالفت کولو ،آسماني دین یې کاملاً تحریف او د خپلو رأیو او خواهشاتو موافق جوړ کړی وو ، چې د خلکو مشکلات نه ور باندې حل کیدل ځکه نو

خلک ددې تحريف او ساختګي دين څخه د لاديني خواته منحرف شول.

نو وروسته په دوی کې ځنې مفکرين پيدا شول چې د دين او هغه څوک چې د دين استازيتوب کوي د لريوالي په فکر کې شول چې په څه طريقه پاچاهان او واکداران لرې کړي .

او نه وه د دوی دا لاره مګر د يو کفر بدلول وو پر بل کفر سره چې دوی وويل : سيادت يا حاکميت به پاچاهانو لره نه بلکي ټولو خلکو لره وي .

يعني دواړه د سيادت او حاکميت په نظر وو خو پاچاهانو د ځان حق بللو او مفکرينو د ټولو خلکو .

او دا چې مفکرينو حاکميت د ټولو خلکو حق بللو بنسټ يې پر دغه خبره ولاړ وو چې :

**د ټولنيز تړون نظريه :**

د ټولنيز تړون نظريه لومړی دغو درې کسانو وړکړې ( توماس هويز ، حون لوک او جان جاک روسو) چې انسانانو په ابتداء کې فطري ژوند کولو نه يې قانون لرلو او نه يې شريعت لرلو نه يې سلطنت او نظم لرلو بيا دوی د خپل ژوند د تنظيم لپاره ټولنيز تړون وکړ چې حکم به خلکو لره وي او خلک به د شرع او قانون جوړولو واک لري .

دا نظريه الحادي او د قرآن سره په ښكاره ټكر كې ده ، قرآنكريم مونږ ته خبر راكوي چې لومړی انسان آدم عليه السلام پيدا شوی او بيا بې بې حوا او كله چې آدم او بې بې حوا ځمكې ته را ښكته شوي دي ، دوی ته د الله تعالی د جانبه شريعت را استول شوی او دوی ته د ژوند د ټولو ضروري چارو او معاملاتو هدايت شوی دی :[وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللّهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلالَةُ فَسِيرُواْ فِي الأَرْضِ فَانظُرُواْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ][27] .

او فرمايي : [إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلاَّ خلاَ فِيهَا ][28] .

او فرمايي :[كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ * قَالُوا بَلَى قَدْ جَاءنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا][29] .

مونږ ددې كفري الحادي نظريې بيان ته څه ضرورت نلرو ، يوازې دومره كافي ده چې پوه شو چې د دغه نظريې (ټولنيز ترون) نسبت «جان

[27]- سوره النحل :۳۶ .
[28]- سوره فاطر :۲۴ .
[29]- سوره الملک :۸،۹ .

جاک روسو» ته کيږي کوم چې د وخت يو بې دينه وو ، او دغه نظريه يې د فرانسي د الحادي انقلاب په انجيل کې ثبت شوه.

او کله چې د دغه نظريې اصل کفري الحاد دی چې نتيجه يې د الله تعالی سره شريک نيول دي يعنې مخلوق ته يې د تشريع ، تحليل او تحريم حق ورکړی دی .

**لنديز:**

لنډه دا چې د وضعي نظام (ديموکراسۍ ) په سيوري کې د حکم حق يوې طائفې يا خلکو يا ملت لره وي يعنې په هر صورت کې د حکم حق بشر لره دی مګر په اسلامي نظام کې د حکم (قانون ، تحليل او تحريم ) حق الله تعالی لره دی يعنې د اسلامي نظام قانون به د الله تعالی له جانبه را ليږل شوی اسلامي شريعت وي او په کوم اسلامي نظام کې چې شريعت حاکم نه وي هغه به هسې په نوم اسلامي وي او په اصل کې طاغوت بلل کيږي .

## د آزادۍ او حقونو د نظريې بنسټ

د ديموکراسۍ په نظام کې د آزادۍ او حقوقو آساس او بنسټ هم الحاد دی لکه څنګه چې د سيادت او حاکميت آساس الحاد دی .

د ديموکراسي په نظام کې د آزادۍ او حقوقو آساس لاندې دوه شيان دي :

۱- ټولنيز تړون : کوم چې مخکې مو بيان کړ .

۲- د طبيعي قانون نظريه :

طبيعي قانون دا چې انسان ته د دولت او نظام مخکې طبيعت حقوق ورکړي دي چې دولت او حکومت به د هغه حمايت کوي او هغو ته په احترام قايل وي يعنې د طبيعي قانون آساس او بنسټ طبيعت ګڼې چې دا نظريه هم په کفري الحاد باندې ولاړه ده ځکه چې طبيعت د الله تعالی د مخلوقاتو څخه يو مخلوق دی چې هغه يې د قانون مصدر ګرځولی دی .

او کله چې مونږ د ديموکراسۍ په نظام کې آزادي او حقوق بيانوو نو د هغه نتايج او آثار هم درته بيانوو:

د مثال په توګه : تعليم د ديموکراسۍ له حقوقو څخه يو حق دی ، ښکاره خبره ده چې تعليم يو ښه حق دی انسان د تعليم په ذريعه له جهل او ناپوهۍ څخه نجات مومي او کولای شي په ګټورو شيانو کې خپله پوهه زياته کړي او همدارنګه ددې نظام تر سيوري لاندې يو کس کولای شي د کفر ، الحاد او ګمراه مذاهبو تعليم حاصل کړي او

نور خلک هغه ته دعوت کړي ، داسې نه ده چې د خير تعليم جايز او د شر او فساد پکې حرام دی ، مونږ يې د حسن او ښه څخه انکار نه کوو مګر بايد په دې باندې پوه شو چې په دغو آزادۍ او حقوقو کې دوې خبرې دي :

اول : د ديموکراسۍ د نظام په آزادۍ او حقونو کې دواړه ښه او بد ، ګټور او مضر دواړه دي او په هيڅ صورت کې يو له بله نشي جلا کيدای .

دوهم : مونږ لکه څنګه چې دې ته دعوت کوو چې د ديموکراسۍ د نظام آساس الحاد دی د هغه څخه خپله بيزاري اعلانوو او په هغه باندې خوښ نه يو نو ددې اراده هم نلرو چې کومو هيوادونو کې چې ظالم او استبدادي نظامونه حاکم دي د هغوی تاييد وکړو کوم چې ظلم او طغيان يې الله تعالى ته معلوم دی بلکي مونږ د اسلامي نظام طرف ته دعوت ورکوو ، د حق ، عدل او خير نظام چې په ټولو حقوقو او آزادۍ کې يې خير نښتی دی د الله تعالى اذن او خوښي پکې ده ، بنسټ يې معصومه وحی (کتاب الله او سنت ) دی چې د هر ډول عيب او نقص څخه پاک دی ، داسې ازادي او حقوق پکې دي چې هم د فرد او هم د ټولنې کامل خير پکې دی .

**د سلطو (قوو ) ترمنځ فرق**

مخکې مو د ديموکراسي نظام آزادي او حقونه بيان کړل او د اسلامي فهم په رڼا کې مو د دوکې پرته د هغوی مقبول اړخ هم بيان کړ پرته له دي چې هيڅ کوم شوق او رغبت ورسره نلرو ځکه چې زمونږ (په دين کې ) داسې آزادي او حقوق دي چې خالص خير دی او د هر ډول شر څخه پاک دي نه نورو ته ضرورت لرو او نه هم د نورو سره شوق او رغبت لرو .

دلته خبره دا ده چې ديموکراسي چې د کومې آزادۍ او حقوقو تضمين کوي هغه د سلطنت د ويشلو له لارې کوي کوم چې درى برخې لري :

قوه مقننه يا قوه تشريعي ( قانون جوړول يا پارلمان) .

قوه قضايه

قوه اجرايه

او مونږ دلته د هغو څخه بحث نه کوو چې آيا د دغو واکونو او قوو تر منځ ويش د برابرى يو مهمه مبدأ ده ؟

او يا د حکومت په حرکت باندې اثر لري ، د تصرفاتو سستوالى او بې نظمى ؟

او آيا د دغو دريو قوو څخه يوې قوې خپل صلاحيت د نورو دوو قوو د

کنترول او لرې کولو لپاره نه کاروي ؟
او يا دا د آزادۍ او حقوقو د تضمين يوازنی لاره ده ؟
مونږ ددې په اړه بحث نه کوو ، هغه څه چې مونږ په هغه باندې تأکيد خوښوو او همدارنګه هر مسلمان په هغه باندې پوهيږي چې په اسلام کې د شرعې حق خالص الله تعالی لره دی او مونږ ته يې د هغه هيڅ اجازه نه ده کړې مګر په اجتهادي امورو کې هغه هم د کتاب الله او سنتو په رڼا کې او معلومه ده چې د اجتهاد حق هم هغه چا لره دی چې اهل اجتهاد وي د اجتهاد شرطونه پکې وي .
اسلامي نظام د واکونو او قوو ويش نه پيژني بلکې د تشريع حق الله تعالی لره دی ، قانون به اسلامي شريعت وي او د ټولو په سر کې به خليفه ، امير يا سطان وي .

**د ديموکراسۍ د نظام حکم د اسلامي نظام د حکم ماتوونکی دی**

مخکې مو ولوستل چې ديموکراسي لکه څنګه يې چې ديموکراتان تعريفوي دوه لاندې صورتونه لري :
الف : په اسلامي نظام کې حکم الله تعالی لره دی يعنې د اسلامي نظام قانون اسلامي شريعت دی چې عبارت له قرآنکريم ، سنتو او همدارنګه د قرآن او سنتو په رڼا کې د فقهاوو او مجتهدينو لخوا د شرعي احکامو

استنباط دی کوم چې الله تعالی د هغه اذن او اجازت کړی دی مګر په ديموکراسۍ کې د قانون جوړولو حق بشر لره دی ،ديموکراسۍ د الله تعالی حکم په کلي توګه ردوي او له هغه څخه انکار کوي نو ځکه د ديموکراسۍ نظام د اسلامي نظام ماتوونکی دی ځکه چې په اسلامي نظام کې حکم يوازې الله لره دی ( د الله تعالی رالیږلی شريعت).

ب : د ديموکراسۍ نظام د شرعي احکامو د تطبيق پر وجوب باندې اقرار نلري نو ځکه د اسلامي نظام ماتوونکی دی لکه چې مخکې مو بيان کړل ، په ټولو فرائضو باندې ايمان او بيا په هغه باندې عمل فرض دی کوم چې د شرعې په ثابت او قاطع دليل او يا ظني دليل چې فقهاءورباندې متفق وي او اهل اجتهاد شرعي دليل بللی وي او بيا د هغه په رڼا کې د نظم او ادارې لپاره ترتيب جوړيږي کوم چې د خلکو په خير وي په شرط ددې چې شرعي احکامو سره هيڅ ټکر ونلري که څه کوم مباح حکم وي .

نو د ديموکراسۍ په نظام کې پورته تعريف او بيان ته په کتلو سره په کلي توګه دين له سياست او د ژوند له نورو چارو څخه عزل او لرې کړ شوی دی او په دې سره د علمانيت (الحاد) يو شکل دی او سراسر د اسلامي نظام د حکم ماتوونکی دی .

## دريم فصل

### د ديموکراسي نظام سره څو جلسات

### لومړۍ جلسه : د ديموکراسۍ او الحاد ترمنځ علاقه

د ډيموکراسۍ او سيکولرزم يا الحاد رابطه او تعلق داسې دی لکه د فرع له اصل سره ، او رابطه د يوې خبيثې ميوې له ونې سره .

سيکولرزم او يا الحاد اصل دی چې يو معاصر کفري مذهب دی چې د دنيا د ټولو چارو څخه لکه : سياست ، ټولنه ، اقتصاد ، اخلاق او قانون څخه يې دين په کلي ډول لرې کړی دی.

او ډيموکراسي د سيکولار فرع يا سياسي برخه ده چې د سياست له ټولو ځانګو څخه يې دين لرې کړی او د قانون او تشريع واک يې خلکو او ټولنې ته ورکړی دی لکه څنګه چې د اشتراکيت او کپيټليزم اقتصادي تعبير په علمانيت (الحاد ) کيږي .

نو په دې ټوکه ويلای شو : چې ديموکراسي د فکري مذاهبو څخه يو مذهب دی چې د سياست د ټولو برخو څخه يې دين ايستلی دی .

کله چې مونږ د تولنيز تړون په نظريه پوه شو نو په دې باندې په آسانۍ سره پوهيدلای شو چې د ديموکراسۍ بنسټ د ټولنيز تړون فلسفي نظريه ده داسې چې (د قانون ، امر ، منعې ، حلال او حرام حق به بشر لره وي ) کوم چې په فرانسه کې د يو انقلاب له لارې د لومړي ځل لپاره دغه الحادي دولت منځته راغلی دی .

## دوهمه جلسه : په اسلام کې ديموکراسي ځای نلري

کله چې مونږ د ديموکراسۍ اصلي څېره ولوسته نو دا راته واضح شوه چې د ديموکراسۍ اصل او بنسټ الحاد دی او مونږ ته دا څرګنده شوه چې دا سخت کفر او د لوړ او لوی الله تعالی سره شرک دی نو کله چې دا حقيقت په پوره توګه مونږ ته واضح شو نو د چا څخه چې دا خبرې اوريدل کيږي ډيره بده ده چې وايي:«ديموکراسي له اسلام څخه ده » او

یا « اسلام د دیموکراسۍ نظام دی » او یا «اسلامي دیموکراسي» او یا دې ته ورته نومونه چې د حق له کلمې (اسلام) سره د باطل او طاغوت کلمه (دیموکراسۍ ) جمع کول دي .

او حتی دا خبرې د داسې چا څخه اوریدل کیږي چې ځان مسلمان بولي خو مونږ (د دیموکراسي ) د کلمې مترادفه کلمه د اسلام په تله کې درته لیکو چې هغه دا ده : « د طاغوت نظام او یا جاهلي نظام » نو پورته عبارات داسې راځي : « د طاغوت نظام او یا جاهلي نظام له اسلام څخه دی » او یا « د اسلام نظام دطاغوت نظام دی » او یا « اسلامي طاغوت او جاهلیت » نعوذ بالله منها .

آیا دا ممکنه ده چې د مسلمانانو څخه دې کوم مسلمان دا کلمات قبول کړي او دا هم ممکنه ده چې کوم د فهم او عقل څښتن دې دا کلمات رد کړي ؟.

## دریمه جلسه : د دیموکراسي نظام شرعاً باطل دی

د دیموکراسۍ د نظام اصل او بنسټ کفري الحاد دی نو ځکه شرعاً باطل دی او داسې هیواد او سیمه د شرعي حاکم څخه خالي بلل کیږي او پر خلکو یې اطاعت او مدد واجب نه دی او پر خلکو باندې لاندې امور واجب دي:

۱- په مسلمانانو باندې شرعاً د ديموکراسۍ ولايت نشته .

۲- د مسلمان علاقه له داسې نظام سره د البراء علاقه ده نه د الولاء[۳۰]

۳- او پر مسلمانانو باندې واجبه ده چې خپل ولس او ټولنې څخه د ديموکراسۍ نظام لرې او پر ځای يې شرعي نظام حاکم کړي .

او په دې باره کې د حرمينو امام «الجويني » پخپل کتاب «غياث الأمم» کې يو لوی فصل ليکلی دی چې د مسلمانانو هغه هيواد چې د شرعي احکامو څخه خالي وي پر هغوی باندې څه کول واجب دي تفصيل دې هلته وکتل شي ځکه چې مهم دی[۳۱] .

## ځلورمه جلسه : په ديموکراسۍ کې داسې خير نشته چې مونږ هغه احتياج ولرو

ډېرې خبرې چې کيږي هغه دا چې ځنې خلک وايي : مونږ په دې کې شک نه کوو چې ديموکراسي په اسلام کې نشته کوم چې پورته بيان شوه هغه ديموکراسي کوم چې په نصراني هيوادونو او کفري ملتونو کې شتون لري ، او بيا دا وايي چې مونږ په ديموکراسۍ کې ځنې ښه شيان موندلي لکه : د حکامو په ټاکلو کې د ملت او خلکو حق چې د استبداد مانع ګرځي او د رأی حق لري او د هيواد په اداره کې د برخې اخيستلو حق

[۳۰]- الولاء : دوستي او مدد کول ، البراء : بيزاري او د زړه کرکه ، مدد او دوستي نه کول .
[۳۱]- همدارنګه «مختصر الطريق اليالخلافه» ص ۱۰۷- ۱۳۰ .

لري نو کله چې داسې وي نو زمونږ لپاره څه مانع ده چې د ديموکراسۍ څخه خير واخلو او شر يې پرېږدو .

او ددې خبرو ځواب دا دی :

۱- اسلام کامل او جامع دين دی چې د ژوند د ټولو چارو لپاره لارښوونې لري ،او د هر مسلمان عقيده ده چې زمونږ دين هيڅ داسې باب نه دی پرېښی چې په هغه کې خير وي او مونږ ته يې بيان کړی نه وي او هيڅ داسې باب يې نه دی پرې ښی چې په هغه کې شر وي او د هغه څخه يې مونږ منع کړي نه وو ، لکه جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم چې فرمايلي :« انه لم يكن نبي قبلي الا كان حقاً عليه أن يدل أمته على خير ما يعلمه و ينذرهم شر ما يعلمه لهم »[۳۲] .

د اسلام دين مسلمانانو ته د ژوند د ټولو چارو لارښوونه کړې ده حتی د قضای حاجت آداب يې هم بيان کړي دي نو آيا دا ممکنه ده چې سياسي نظام به پوره نه وي او مونږ به نورو ته احتياج وو ؟

د اسلامي شريعت له سترو مقاصدو څخه يو مقصد د اسلامي نظام او اسلامي حکومت قيام دی .

[۳۲]- رواه مسلم .

[لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ][٣٣] .

ژباړه : يقيناً چې مونږ خپل پيغمبران له خپلو روښانه او څرګندو هداياتو سره ولېږل او له هغوی سره مو کتاب او تله نازل کړی وو تر څو پر خلکو کې عدل قايم شي .

د عدل د قيام څخه مقصد شرعي نظام دی .

او بل دا چې :

د اسلام تاريخ په دو برخو ويشل شوی دی د تکوين دوره او د حکومت او شريعت د تأسيس دوره .د تکوين دوره چې په مکه کې د وحی د نزول نه شروع وه پيغمبر صلى الله عليه وسلم د الهي دستور له مخې د شرک او بت پرستی پر وړاندې مبارزه کوله او خلکو ته يې د اسلام دعوت ورکولو .

د مدينې منورې ټوله دوره د حکومت او شريعت په تأسيس کې تير شوي ده .

او اسلامي شريعت د امير د ټاکلو لپاره د مصلحت څخه ډکې لارې ټاکلی دي .

نو مونږ په اسلامي سياست کې يو ګمراه ملت ته د څه لپاره اړتيا لرو ؟

---

[٣٣]- سوره الحديد :٢٥ .

٢- او همدارنګه مخکې مو بيان کړل چې د ديموکراسۍ اصل او بنسټ کفري الحاد دی نو بيا د ښه او بد جلاوالی پکې ممکن نه دی ځکه چې اساس يې يو دی .

٣- او دا چې وايي په ديموکراسۍ کې څه داسې څه شته چې خير دی نو خير به ورڅخه اخلو او شر به يې پريږدو .

هغه امت چې الله تعالی ورته افضل او خير امت ويلي [كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ][٣٤] .

کله چې زمونږ امت الله تعالی خير د امتونو بللی نو بيا ولی خپل خير ،عزت او شرافت د بل په شر او ذلت خرچوو؟

او هر چې اختراعات ، نوي انکشافات او علمي تجارب او نور مباح امور دي هغه الله تعالی مونږ ته پريښې تر څو د امت د هر عصر زمان د مصالحو په نظر کې نيولو سره اجتهاد او کوښښ پکې وکړو .

او هغه چې د الله تعالی او د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم امر ، نهی ، هدايت او لارښوونه ده نو ټول خير په هغه کې دی او په دې برخه کې هيڅ چا ته ضرورت نلرو .

---

[٣٤]- سوره آل عمران : ١١٠ .

## پنځمه جلسه : ديموكراسي د اسلامي نظام پر وړاندې قاطع طريق ده

ډېر کسان د کفري هيوادونو لخوا په عربي او اسلامي هيوادونو باندې د فکري هجوم په اړه نه پوهيږي کوم چې دوی دعوی کوي چې مونږ ستاسې ټولنيز نظم او آزادي غواړو ، بې امني له منځه وړو او ستاسې د آزادۍ او امن ساتنه کوو .

واروه ای اوريدونکيه او ولوله ای لوستوکيه ! آيا کفري هيوادونه پر مسلمانانو باندې دومره رحمت او شفت لري چې مسلمانان د جابرو حاکمانو څخه خلاص کړي ؟ عجيب شی .

که مونږ پوه شو نو دا رحمت او شفقت نه دی بلکي دا د اسلامي نظام د لارې شکول دي تر څو په اسلامي هيوادونو کې اسلامي نظام رانشي .

**اوتوضح يې داسې ده**

حاکم ظالم رژيمونه په تدريجي توګه قدرت ته رسوي او په خلکو کې د هغوی رسوخ ته وده ورکوي او پر مسلمانانو باندې به له ښي او ګين لوري را تاو شي چې د اسلام پرته بل د رجوع ځای نلري او کله چې د اسلام د بيا ژوندي کولو او اسلامي ويښتابه ځواک را پيدا شي او څه قوي شي او نږدې وي چې حاکم رژيم نسکور کړي نو دلته د دوی

درواغجن رحم او شفقت را ښکاره شي او بيا د ديموكراسۍ پيرو هيوادونه د ديموكراسۍ د راوستلو غوښتنه كوي مگر اصل حقيقت دا دی چې دوی د اسلامي نظام مخه ونيوله .

او پر خلكو باندې په يو بل نامه سره هماغه جابره او ظالم حاكمان قدرت ته رسوي او يا د هغوی ملاتړ كوي تر څو اسلامي ځواک د اسلامي نظام قيام ته پرې نږدي .

لكن اسلامي ويښتابه ته پكار ده چې خپلې صحي لارې ته ادامه وركړي د الله تعالی په اذن به حتماً خپل مقصد ته رسيږي .

مگر ځنو بيا د بصيرت پرته د هغوی په دام كې را گير شول او د ديموكراسۍ شعار يې ورسره بدرگه كړ او څه ناڅيز شی يې وركړل خو وروسته يې ډېر زيات تاوان وكړ او هر څه يې له لاسه وركړل .

او زه هنوز هم هغه ورځ په ياد لرم چې د يو عربي هيواد رئيس جمهور دې ته تيار شو چې يو اسلامي حركت چې پوره قوت يې تر لاسه كړی وو او هر ځای يې مرسته كوونكي لرل او خبره تر فوځ او پوليسو پورې ورسيده يعنې په هغوی ور داخل شول او وروسته يې په رسمي بيان كې په ديموكراسۍ اعتراف وكړ حال چې په دغه گوند څلور پيړۍ تيرې شوې وې او ډيرو كسان چې په اصلي حقيقت نه پوهيدل هغوی دا

نيک کار او صحي لاره بلله مګر په اصلي حقيقت دوی نه پوهيدل چې ددې څخه يې مطلب د اسلامي نظام مخنيوی وو .

## شپږمه جلسه : په اسلامي هيوادونو کې د ديموکراسۍ غوښتونکي

يقيناً چې ډير کسان د ديموکراسۍ خبرې کوي او په مختلفو غلوونکو شعارونو او افکارو سره د هغه لوري ته دعوت کوي .

**د دوی څخه ځنې :**

ځنې علماء او هغه کسان چې خپل ځان علم او پوهې ته منسوبوي عجيب کار دا دی چې مونږ د هغوی په کتابونو کې دارنګه کلمات مومو چې : اسلامي ديموکراسي ، د امت رهبري ، خلک د سلطنت مصدر دی ، اسلامي شراکت او نور چې هغو اصطلاحاتو ته ورته والی لري چې بنسټ يې الحاد دی او د هغو کفارو لخوا زمونږ هيوادونه ته را د ننه شوي چې زمونږ په اسلامي هيوادونو غالب دي .

کچيرې مونږ ددغو اصطلاحاتو په اړه فکر وکړو او هغه درک کړو نو مونږ ته به څرګنده شي چې دا ډول اصطلاحات نه شرعي وزن لري او نه هم علمي بلکي خپل ځانونه يې (په پټو سترګو) د هغوی مدافعين ګرځولي او په هغه کې چې د کفر او ګمراهۍ څه دي هغه يې نه دي درک

کړي او په دغه لاره کې يې د نصوصو او تاريخي حوادثو غلط تأويل کړی دی .

مونږ پر دوی باندې تهمت نه لګوو او نه هم بد نيت لرو بلکې زمونږ هدف تنبه او خبرول دي تر څو په دغو اصطلاحاتو کوم چې اسلامي رنګ يې ورکړی څوک تېرنوځي .

**او له دغو علماوو** او علم او پوهې ته منسوب کسانو په دعوت او اصطلاحاتو کې ګمراهي وي خو په عين حال کې ډېر لوستي مسلمانان دغه غير شرعي ثقافت نقلوي او د کفارو له سلطې وروسته په يوه اسلامي ټولنه کې ځای نيسي .

او دا علماء د ديني اعتقاداتو او هغه څه چې دوی يې وايي تر منځ د توافق کولو اراده لري او وايي : حکم خلکو لره دی او د حکم مصدر خلک دي مګر بيا ددې سره قيد لګوي او داسې نه وايي چې مطلق حکم خلکو لره نه دی لکه څنګه چې مشهور دی او دوی وايي حکم شرع لره مقيد دی نو دا خبره هم سمه نه ده ځکه چې ددې خبرې آخري برخه لومړی برخه ردوي ، ځکه چې «السيادة » (حکم او سلطه ) لکه څنګه مو چې مخکې تعريف کړه چې عبارت له هغه لوړ حکم او سلطې څخه دی چې د هغه څخه پورته بل څه نشته ، نو څنګه سلطه مقيده او که

مقيدوالی ممکن وي نو لومړی خبره بيا باطله شوه چې په اسلام کې حکم او سلطه خلکو او ملت لره وي .

او خلک او ملت به د حکم او قانون جوړولو مصدر وي ځکه چې داخبره يو بل ردوي او په اسلامي نظام کې حکم او تشريع اسلامي شريعت دی او خلک او ملت د الله تعالی پر وړاندې چې واحد قهار دی د بنده کې حيثيت لري او د حکم او تشريع هيڅ صلاحيت نلري .

**او ځنې د ديموکراسی داعيان** هغه ډله ده چې پخپل ګمان يې نيک نيت او سطحي فکر سره غوټه کړی خو دوی اصلاً په کامله غلطۍ کې دي ،وايي چې : په ديموکراسی کې څه خير او عدل شته مونږ هغه خلکو ته بيانوو او اسلام هغه څوارلس سوه کاله مخکې بيان او د خلفاء راشدينو په وخت منځته راغلی .

**او ځنې د دوی** په دوکه کوونکو شعارونو تيروتلي دي چې د حکامو په ټاکلو کې اختيار ، او رأی حق او نور نو که د ديموکراسی مخالفت وشي نو دا حقوق به ضايع او د انسان کرامت به ټيټ شي .

**او ځنې دعوتګر** دا ګمان کوي چې ديموكراسۍ هغوی ته آزادي وركړې نو څومره مو چې وس کيږي د دعوت فرضيه به تر سره کوو نو په همدې خاطر د ديموكراسۍ نارې وهي [٣٥]

**او همدارنګه ځنې دعوتګر** په عمل کې د اسلامي نظام ارجاع غواړي او هغوی اراده لري چې مونږ به د ديموكراسي له لارې د اسلامي نظام قيام كوو ، مګر افسوس ( د دوی په حال) او په حقيقت کې دا تصور غلط دی او دا د دوی سطحي فكر دی او ډېر كسان د جهاد څخه منع كوي .

خو دا د دوی لوی غفلت او سطحي فكر دی او آيا دوی دا حقيقت هير كړی دی چې اسلامي نظام په كامله توګه د ديموكراسي نظام ماتوونكی دی ؟

كه دوی دا حقيقت نه وي درک كړی نو د ديموكراسي عَلمبردارانو دا حقيقت درک كړی دی او غواړي چې په ټولو ممكنه وسائلو د اسلامي نظام د قيام مخنيوی وكړي .

او كله چې د اسلامي نظام او د ديموكراسۍ د نظام تر منځ كامل تناقض او مخالفت وي نو دا به غفلت او ساده ګي نه وي چې فكر كوونكی داسې فكر وكړي چې ديموكراسۍ واله كوښښ كوي تر څو

[٣٥]- او زمونږ دعوت يوازې د حق طرف ته دعوت دی نه د ګمراهۍ او باطل طرف كوم چې د ديموكراسۍ د نظام له آزادۍ سره لوی فرق لري .

مسلمانان پرېږدي چې د ديموكراسۍ له وسائلو څخه كار واخلي او په هغه باندې خپله قضاء وكړي او بيا د هغه پر ځاى د اسلامي نظام قيام وكړي ؟

**ځنې جماعتونه او ګوندونه** پخپل اسلامي فعاليت كې ديموكراسي اختيار كړې او دوى د خپلې سياسي لارې د ثبات كوښښ كوي مګر تاسې بايد په دې پوه شئ چې هغوى ته څه ور پيش شول .

كله چې د دوى اسلامي حركت د سياست په لاره كې ښكاره شوى دى نو پر هغوى يې حمله كړې او هغوى يې نيولي او بندي كړي دي او هغوى يې سكنجه كړي او يا وژلي دي .

دا ټول د څه په نوم وشول ؟ د ديموكراسۍ په نوم كوم چې دوى يې نارې وهلې .

او آيا د ديموكراسۍ علمبرداران مو څه غږ اروي ؟

او ددې مثالونه په عمل كې زيات واقع شوى دي .

**او د دوى څخه يو ستره ډله** بلكي زيات خلک هغه كسان دي چې دوى د ديموكراسي څخه خبرې كوي خو حقايق يې نه دي درک كړي بلكي د هغه څخه يې تقليد كړى دى څه چې عامه رسنۍ خپروي .

او دا ډلي ټولې په غلطه لاره تللي دي دوى د توجيه لپاره بل هيڅ شى نلري بلکي يوازې د کفر طرف ته دعوت کوي د کفر صفت بيانوي او په پټو سترګو يې قبلوي.

**او د دوى څخه ځنې** سخت خطرناک دي کوم چې ديموکراسۍ ته په دې نامه باندې دعوت کوي چې دا د اسلام سياسي نظام دى او په دغو ډله کې زيات ليکوالان او يا هغه کسان دي چې ځانونو ته مفکرين وايي او همدارنګه په دوى کې ځنې د پوهنتونو استاذان او په خاصه توګه هغه کسان دي چې دوى وضعي قوانين او غربي نظام لوستلي وي او د هغه تر تأثير لاندې راغلي وي او دا کسان په اصل کې د علمانيت نماينده ګي کوي .

**او د دوى څخه** يوه بله ډله د نورو ملتونو خلک دي لکه يهود او نصارا کوم چې په ځنو اسلامي هيوادونو کې موجود دي نو د هغوى لپاره په ديموکراسۍ کې نجات دى تر څو دوى اسلامي نظام ته له سرتيټۍ خلاص شي .

او په عين وخت د ديموكراسي تر سيورې لاندې نظام کې چې د دوى د قيادت کوم مراکز دي هغه چې هدف يې د اسلامي نظام محاصره او اشغال دى.

## اوومه جلسه : د اسلامي نظام پر وړاندې د ديموكراسي جنګي وسائل

ديموكراتان ، ملحدين او د اسلام نور دوښمنان د اسلامي نظام پر وړاندې د مختلفو وسائلو څخه كار اخلي چې د يو هيواد له بل هيواد سره فرق لري او د يو وخت نظر بل وخت او همدارنګه د مسلمانانو سياسي نظام او د اسلامي بيدارۍ قوت او ضعف ته په كتلو سره فرق كوي .

كچېرې د يوه هيواد قيادت او اسلامي ويښتيا ضعيفه وي نو د هغوی پر وړاندې به جنګ هم سست او آسان وي او ښكاره او ډاګيز به نه وي، مګر كچېرې د مسلمانانو قيادت او اسلامي بيداري قوي او شامله وي نو د هغوی پر وړاندې به د دوی جنګ هم قوي او هر اړخيز وي .

مونږ دلته د هغوی ځنې وسائل بيانوو نه ټول ، هغه وسائل چې دوی يې د اسلامي نظام پر وړاندې كاروي دا دي :

**١- د اسلام د سياسي نظام څخه انكار:**

د اسلام د سياسي نظام څخه انکار کول او دا ويل چې په دين کې داسې څه نشته چې مسلمانان د نورو ټولنيزو او سياسي علومو څخه منع کړي کوم چې د هغه په وسيله خپل نظم او سياست قايم کړي[٣٦].

د سياسي نظام څخه د انکار تور او تهمت لومړى د ازهر شيخ علي عبدالرازق په خپل کتاب «الاسلام و أصول الحکم» کې ولګولو او بل يو ليکوال په نوم د خالد محمد خالد وو چې د «من هنا نبدأ» په نوم کتاب کې يې دا تهمت ولګولو .

مګر د الله تعالى په فضل د هغوى پر وړاندې علماء ودريدل او د هغوى دغه درواغجن تهمت يې د قرآن ، سنتو او اجماع امت په قاطع دلائلو رد کړ او په هغه وخت د عبدالرزاق د محاکمې لپاره د سترو علماوو اجماع جوړه شوه او هغه يې د علماوو له ډلې څخه وشړلو او په حقيقت يې هغه د مسلمانانو له ډلې څخه لرې کړ .

الحمد لله چې دا آواز له منځه لاړ او بيا چا وانرويد او نه هم وروسته چا د هغه جرأت وکړ او خلکو ته دا حقيقت څرګند شو چې دا د اسلام دوښمنو څخه نقل شوي خبرې دي .

[٣٦]- مؤلف حفظه الله په دې باره کې تفصيل ورکړى دى، ما دغه تفصيل را لنډ کړ ځکه چې د هغوى خبرو ته ډير زور ورکول مناسب نه دي .

پورته بيان شوی صورت د اسلام د سياسي نظام څخه د انکار يو بد صورت وو مګر دلته د هغه څخه يو بل بتره او زيات خبيث صورت لولو چې دا صورت د اسلام په شرعي مصادرو باندې تيری او هجوم دی داسې چې سياسي احکام يې ورڅخه ايستلي دي لکه په لاندې ډول :

٢- دا وسيله د اسلام سياسي نظام ته په تسليمۍ باندې ولاړه ده خو څه ډول تسليمي ،وايي چې : اسلام د سياست او دولت دين دی او بيا ددې خبرې څخه دا اطلاق کوي چې د عملي سياست د احکامو مصدرونه يوازې قرآن او سنت دی او د نورو احکامو او حتی اجماع څخه انکار کوي که څه هم په هغه باندې د صحابه کرامو اجماع وي.

په دوهم قدم کې د پخوا پشان اقرار کوي چې اسلام لره سياسي نظام شته او وايي : قرآنکريم چې د سياست په اړه کوم احکام بيان کړي دي د عامو قواعدو په توګه دي نه په تفصيلي توګه ددې خبرې معنی دا ده چې د سياسی نظام لپاره محدود احکام نشته کوم چې د هغه په وجوب باندې ټينګار شوی وي .

او دلته يوازې عام قواعد ذکر شوي دي چې يوازې په هغه باندې ټينګار شوی دی چې دا د غرب يوه طريقه ده چې اسلامي نظام ته يې

ورداخله کړې په دې دعوی سره چې د عامه قواعدو سره څه تعارض نلري .

او بیا په دریم قدم کې د دوی په نزد د عملي سیاست دوهم مصدر سنت دي او وايي : د سنتو احکام دوه ډوله دي یو هغه دي چې دایمي احکام دي او بل هغه چې د نبوت په زمانه پورې اړه لري او دوی په دې کې درواغجن دي - د سنتو هغه احکام چې دستوري او عملي سیاست پورې اړه لري لکه عامه قاعده نو هغه په دوهم ډول پورې اړه لري کوم چې په وخت پورې تړلي دي.

او دا په حقیقت کې په نظري ډول ددې خبرې رد دی چې وايي اسلام لره سیاسي نظام دی ځکه کله چې د سیاسي احکامو لومړی مصدر قرآنکریم وي د دوی په نظر چې تفصیلي احکام پکې محدود دي او دا چې سنت یې دوهم مصدر وي او په هغه کې تفصیلي احکام چې پر مونږ لازم وي نشته ، نو ددې خبرې معنې څه ده چې دوی د اسلام په سیاسي نظام باندې اعتراف کوي ؟

او ددې مسلک او طریقې ضرر زیات او د هغه مسلک څخه خلکو ته زیات د دوکې وړ دی کوم چې په ښکاره د اسلام له سیاسي نظام څخه انکار کوي ، په دې مسلک کې هم په عین وخت کې دوی د اسلام له

سياسي نظام څخه انكار كوي خو په داسې طريقه چې د ډېرو خلكو څخه پټ وي .

وګورئ چې دوی د معصومې وحی له پرېښودلو وروسته د اسلامي دولت د سياسي احكامو مصادر څنګه وګرځول - وګورې د اسلامي نظام پر وړاندې د دوی جنګ او مقابلې ته !

او كيدای شي ته پوښتنه وكړې او ووايې چې : دغو ليكوالانو ته څوک دغه خبرې وړاندې كوي ؟ نو تاته به د دوی د خبرو څخه په تيزی سره ځواب دركړي چې دا د ديموكراسي د وضيعې قانون تقليد او هغه ته سر ټيټی دی .

وګوره چې د هغوی يو كس څه وايي : په اوسني وضيعي قانون كې كوم چې مخكې مو بيان كړ د تشريع او قانون جوړولو مصدر عبارت له : پارلمان ، رئيس دولت او يا عرف څخه دی.[٣٧]

حقيقت دا دی چې په دغه مسلک كې چې دوی د اسلامي سياست څخه د شرعي احكامو د لرې كولو كوښښ كړی دی په اصل كې دوی دين له دولت څخه لرې كوي او دين له سياست څخه د او دا د سيكولرزم سياسي څېره ده لكه مخكې مو چې بيان كړ .

[٣٧]- وګورئ «النظرية الاسلامية في الدولة » ص ٩٠ .

نو مونږ ته دغه مسلک کشف او څرګند شو او د هغو کسانو دوکه او ګمراهي هم څرګنده او ښکاره شوه کوم چې دغه مسلک ته دعوت کوي او ددې پېژندل پر علماوو او طلابو واجب دي او الله تعالی څخه سوال کوم چې پخپل فضل ماته په دې باره کې د ځانګړي کتاب ليکلو توفيق راکړي .

۳- او د دوی د وسائلو څخه د اسلامي نظام پر وړاندې د دوی بله وسيله دا ده چې : د مسلمانانو د ځنو خلفاء ، امراء او حکامو خطاوې په اسلامي نظام پورې تړي .

او يا يې د امت د هغو افرادو څخه استفاده کړې چې دوی د شرعي احکامو په فهم کې نيګړتيا لري ، د اسلامي نظام طبيعت دا دی چې د خپلو حاکمانو به اطاعت کوي ، اسلامي نظام هيڅ قسم استبداد ، ځان غوښتنه نه مني بلکي ټول به د خپل امير اطاعت کوي .

ددې مسلک ګمراهي او خطاء د ټولو لپاره واضح او ښکاره ده څوک چې د اسلام په حقيقت پوهيږي ځکه چې :

الف): په شرعي نصوصو کې د امير او حاکم لپاره د ادنی ظلم او طغيان ځای نشته بلکي حرام دی او د مرتکب لپاره سخت وعيد دی په دې اړه ځني نصوص داسې راغلي : رسول الله صلی الله عليه وسلم

فرمايلي: «اللهم من وَلي من أمر أُمتي شيئاً فشق عليهم فاشقق عليه، ومن وَلِيَ من أمر أمتي شيئاً فرفق بهم فارفق به»[38]

ژباړه : ای الله ! څوک چې زما د امت د يو کار سرپرستي په غاړه واخلي او هغوی سره سختي وکړي ته د هغه سره سختي وکړې ، او څوک چې زما د امت د يو کار سرپرستي په غاړه واخلي او د هغوی سره نرمي وکړي نو ته د هغه سره نرمي وکړې .

او فرمايي : «ما مِن عبدٍ يسترعِيهِ اللَّه رعيَّةً ، يَمُوتُ يومَ يَموتُ وهُوَ غَاشٌ لِرَعِيَّتِه، إلاَّ حَرَّمَ اللَّه علَيهِ الجَنَّةَ »[39]

ژباړه: هيڅ داسې بنده نشته چې الله تعالى هغه د خپل رعيت لپاره شپون گرځولی وي او هغه په داسې حالت کې وفات شي چې له خپل رعيت سره يې خيانت کړی وي مکر دا چې الله تعالى به په هغه باندې جنت حرام کړي.

او فرمايي : « ما مِن أَمِيرٍ يَلِي أُمورَ المُسلِمين، ثُمَّ لا يَجهَدُ لَهُم، ويَنْصحُ لهُم، إلاَّ لَم يَدخُل مَعَهُمُ الجَنَّةَ » .

---

[38]- رواه مسلم ٢١٤/١٢ .
١١- رواه مسلم ٢١٣/١٢
١٢- رواه أحمد ٢٦٧/٥ .
[39]- متفق عليه .

ژباړه : هیڅ داسې امیر نشته چې الله تعالی هغه ته د مسلمانانو امارت سپارلې وي او بیا د هغوی لپاره کوښښ نه وي کړی او هغوی لپاره یې خیر نه وي غوښتی مګر دا چې الله تعالی به هغه له هغوی جنت ته داخل نه کړي.

ب): الحمدلله په شرعي نصوصو کې داسې څه نشته چې امت دې د امیر او حاکم د ظلم او طغیان په مقابل کې سکوت او یا دې هغه ته خپل سر ټیټ کړي په دې باره کې د أمر بالمعروف او نهی عن المنکر ، د ظلم او باطل د رد او تغیر واضح نصوص موجود دي .

او همدارنګه په اسلامي شریعت کې د حکامو د محکومیت لپاره واضح بنسټونه موجود دي ، د شریعت څخه د مخالفت په صورت کې د هغه د اوامرو د رد حکم شوی دی ، او دا نصوص د وصیت او نصیحت په شان نه بلکې د وجوب په صیغه سره راغلي دي .

او همدارنګه په اسلامي شریعت کې د والي او حاکم لپاره حدود ټاکل شوي دي چې په کومو شرطونو به پخپل منصب پاتې کیږي او په کومو شرطونو به له خپل منصب څخه غورځول کیږي او دا هر څه د سپیڅلي اسلامي شریعت په نصوصو کې راغلي چې د هر ډول تحریف

او تغير څخه محفوظ دي او همدارنګه د دغو اسلامي ضوابطو او شرايطو په اړه علماوو ځانګړي تأليفات کړي دي.[٤٠]

۴: او همدارنګه د اسلامي نظام پر وړاندې د دوی له وسائلو څخه دا وسيله ده چې وايي : اسلامي نظام مثالي دی نو دا په هغه وخت کې صالح نظام وي چې د هغه په مثل صالح قيادت ولري .

او ددې باطلې وينا په رد کې دا کفايت کوي چې هغوی ته وويل شي چې : د اسلام د سياسي نظام تر سيوري لاندې چې کله په مدينه منوره کې د جناب رسول صلى الله عليه وسلم په قيادت سره اسلامي دولت جوړ شو ، د هغه څخه څو پيړۍ وروسته مسلمانانو د همدغه نظام تر سيوري لاندې د ځمکې لويديځ او ختيځ فتح کړل او د اسلام بيرغ يې ورباندې ورپولو او په خلکو کې يې حق او عدل قايم کړ او د انساني تاريخ مخ يې بدل کړ ، دا هر څه د اسلام تر سيوري لاندې او د اسلامي دولت تر سيورې لاندې وو ،نو آيا دا د تطبيق وړ نظام نه دی ؟

۵- او همدارنګه د اسلامي نظام پر وړاندې د دوی له وسائلو څخه دا وسيله ده چې د اسلامي نظام په تاريخ کې يې تحريف او تأويل کړی دی .

الف ): د دوی ډير تاريخي روايات باطل او درواغ دي کوم چې په هغه

[٤٠]- وګورئ «الطريق الى الخلافة » ص ٧١-٩٣ .

باندې د تاريخي قضيې اثبات نشي کېداى .

ب ): د ډيرو صحې رواياتو تأويل او حتى تحريف کړى دى .

ج) : د ستر دولت د تاريخ څخه د ډيرو مسلمانانو نا خبري .

دوى په خپلو دروغو ، تأويل او تحريف سره د اسلامي نظام تاريخ ته داسې څېره ورکړې ده چې خلفاء راشدينو پرته نور د ظلم او طغيان څخه ډک وو .

د تأسف ځاى دا دى چې ډير خلک هغه که اهل علم دي او يا غير اهل علم او حتى زده کوونكي د امت د خلفاء راشدينو او يا عمر بن عبدالعزيز او يا صلاح الدين د تاريخ پرته نور د اسلامي امت د ختيځو او لويځو هيوادونو د فتوحاتو تاريخ او اسلامي نظام څخه هيڅ معلومات نلري .

که څه هم د اسلامي دولت دغه تاريخي حقائق په آسانه توګه پوره توضيح شوي چې اسلامي دولت په تاريخ کې د دجالانو ټول دروغ او دوکې لرې کولو لپاره کفايت کوي او د ټولو علماوو ، زده کوونکو او ليکوالانو لپاره ښايي په دې باره کې په بيړه کوښښ وکړي او هغه ناديده ونيسي او حتى هغه ونه ځنډوي ( مسلمانان بايد اسلامي تاريخ او د اسلامي امت تاريخي حقايقو باندې پوه او هغه درک کړي) .

## آتمه جلسه ،په ديموكراسۍ نظام باندې د مسلمانانو د قانع كولو وسائل

ديموكراتان په اسلامي هيوادونو كې د اسلامي نظام د له مينځه وړلو او تغيرولو لپاره د زياتو وسائلو څخه كار اخلي تر څو هلته بيا اسلامي نظام رانشي .

چې ځنې وسائل يې په لاندې ډول دي :

**١- د اسلامي نظام پرووړاندې جنګ :**

په دې اړه د دوی وسائل مخكې بيان شول ، اسلامي نظام د نورو نظامونو په پرتله د مسلمانانو په زړونو كې خاص ځای لري نو دا هيڅ امكان نلري چې مسلمانان دې مخالف نظام ته اجازه وركړي او يا دې هغه ته تسليم شي مګر دا چې په اسلامي نظام باندې هجوم وكړي او يا هغه تغير كړي تر څو مسلمانان پر خپلو ځانونو باندې اعتماد له لاسه وركړي او په آسانۍ سره يې هغه نظام ته چې د دوی مخالف وي قانع كړي .

او د اسلامي نظام پر وړاندې د دوی جنګ سخت (او هر اړخيز) وي چې له دوكې ، فريب او درواغو څخه كار اخلي مكر الله سبحانه وتعالى

پخپل کار باندې غالب دی [يُرِيدُونَ لِيُطْفِؤُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ][41] .

ژباړه : غواړي چې مړ کړي نور (اسلام) په خپلو خولو سره او الله پوره کوونکی د نور خپل دی که څه هم بد ګڼي (دغه کار) کافران .

**۲- د ديموکراسۍ نظام لپاره تبليغات کول :**

د ديموکراسۍ نظام ته داسې انځور ورکول چې دا يوازنی نظام دی چې خلکو ته يې د کوم قيد پرته د خپلو مشرانو د ټاکلو اختيار ورکړی دی او همداسې د هغه د تغيرولو امکان شته کله چې د ژوند په چارو کې د نظم او امن کې د قانون او دستور څخه ووځي مګر :

اول : آيا دا يوازنی نظام دی چې بديل نلري ؟ مونږ د حق (اسلامي نظام) او باطل (ديموکراسۍ ) تر منځ د مقايسې کولو اراده نلرو مګر يوازې دومره وايو چې : که په دغه نظام کې څه ظاهري غوروالی وي نو زمونږ په نظام کې داسې سراسري ښه والی دی چې هغه د هر ډول بدۍ او غيب څخه پاک دی خو د ډيموکراسۍ نظام له غيبونو او بدويو سره ګډ دی .

يقيناً اسلامي نظام يوازنی نظام دی چې هغه د ژوند په ټولو چارو کې

---

[41] - سوره الصف : ۸ .

خير وړاندې کوي او له شر او غيب څخه پاک دی .

او په دې اړه د قرآن او سنتو زيات نصوص راغلي نشم کولای دلته يې بيان کړم ، الله تعالی ته سوال کوم چې ماته د اسلام د سياسي نظام په باره کې د مفصل او آسانه کتاب د ليکلو توفيق راکړي تر څو د دغه موضوع حقيقي او کامل درک وربانديې وشي .

دوهم : په ديموکراسۍ کې آزادي حقيقي آزادي نه ده ، ځکه چې د هغه بنسټ د خلکو په خاصې ډلې او طائفې ايښودل شوی دی هغه که لږ وي يا ډير ، اربابان او خدايان وي چې د دوی لپاره شرع او قانون جوړوي چې دا په حقيقت کې د بشر د يوې طائفې عبادت کول دي د بشر بلې طائفې ته که څه هم په ظاهره آزادي ده .

دريم : آيا دا د قيدونو پرته مطلقه آزادي کوم چې ديموکراسي يې وړاندې کوي د انسان کرامت پکې ساتل شوی ؟

ځواب : هيڅکله نه ، ځکه د انسان کرامت دا دی چې د هغه سره د انسان تعامل او سلوک وشي نه د حيوان ، دا د انسان کرامت نه دی چې د ديموکراسۍ په نظام کې د مجلس نمايده ګان راټول شي مناقشې سره وکړي او خپلې رأی وړاندې کړي او بيا داسې يو قانون تصويب کړي چې نارينه له نارينه او ښځه له ښځې سره نکاح کولای شي او ددې

مو مخکې مثالونه بيان کړل دا لوی او پراخه فساد دی چې همجنس بازي يې مباح کړه نو چيرې دی انساني کرامت ؟

نو ويلای شو چې : دا کرامت چې ديموکراسي يې د انسان لپاره وړاندې کوي داسې چټل کرامت دی چې د انسان قيمت له منځه وړي که يو طرف ته انسان ته د انسان په سترګه کتل کيږي خو بلخوا په ډيرو چارو کې د هغه سره د حيوان څخه هم پست سلوک کيږي ؟ نو په کومو اسلامي هيوادونو کې چې استبدادي نظام حاکم دی د هغه بديل دا نشي کيدای بلکي مونږ د هغه بديل اسلامي نظام غواړو چې د هر ډول بدی پرته حقيقي آزادي پکې ده هغه نظام چې بنسټ يې د الله تعالی فرمابرداري او د ټول د عالم پالونکی الله دی .

څلورم : په ډيموکراسي نظام کې اکثره آزادۍ فساد او رذالت او د دين او اخلاقو ماتوونکي دي مګر دا آزادي ظاهري بنه لري ،وګورئ چې د هغوی يو څيړونکی څه وايي : په غربي ديموکراسۍ کې آزادي د زور واکو په حق کې آزادي ده د بيان ، تبليغاتو او ګوندونو آزادي او د عامو خلکو رأيې د دوی لپاره د حکومت ته د واک د رسيدو وسيله ده او د ټولو ستنې مالي لګښت دی .

او دا دوه عناصر د څو مالدارو سره دي چې دوی د کوم جنجال پرته د حکومت واک تر لاسه کوي .

۴- او د دوی د وسائلو څخه بله وسیله داده چې دیموکراسي ته یې د اسلام جامه ور اغوستې ، وایي چې دیموکراسي د شورۍ عصري شکل دی چې د دغه درواغجني ادعا لپاره د شریعت له ځنو قواعدو څخه کومک اخلي لکه : «المصالح المرسلة » او د اسلام صلاحیت د هر ځای او وخت لپاره .

او دا وسیله اکثراً په هغو هیوادونو کې کاروي چیرې چې اسلامي خوځښتونه موجود وي نو دوی مجبور دي څو دیموکراسۍ ته اسلامي رنګ ورکړي .

د شورۍ بحث او خبره اوږده ده ، دلته یوازې دومره ویل پکار دي چې : د دیموکراسۍ او شورۍ تر منځ هیڅ نسبت نشته بلکې داسې دی لکه : اسلام او کفر .

**د شورى او ديموكراسۍ ترمنځ فرق**

١- شورى اسلامي لفظ دى د يو كامل نظام برخه ده هغه نظام چې په دې باندې ايمان لري چې حكم هغه شريعت لره دى چې د الله تعالى له طرفه په ورستني پيغمبر د آدم عليه السلام د اولادې سيد محمد بن عبدالله صلى الله عليه وسلم باندې نازل شوى دى چې ټول امر الله لره دى ، ټول حكم الله لره دى ، ټول تشريع حلال او حرام ګرځول الله لره دى .

مګر د ديموكراسۍ مذهب په دې باندې باور لري چې ټول حكم بشر لره دى چې مخلوق دى ، ټول امر دوى لره دى ، تشريع او قانون جوړول ټول دوى لره دي ، د حلال ګرځولو او حرام ګرځولو صلاحيت دوى لره دى ، د دوى په نزد ښه هغه دي چې د دوى هوا او حوس يې ښه وګڼي او او خبيث هغه دي چې د دوى نفسونه يې خبيث وګڼي .

٢ - د اسلامي نظام په شورى كې د ټولو خلكو لپاره چې د مختلفو استعدادونو او توانايي څښتنان دي حق نشته بلكي د شورى لپاره اهليت شرط دى كوم چې ثقه ، عادلان او په هر هغه څه كې چې د دوى څخه مشوره غوښتل كيږي په هغه باندې پوه وي.

مګر په ديموكراسي نظام كې د عالم او جاهل ، اهل خير او اهل شر ، د دانا او او احمق هيڅ فرق نشته بلكي هر چا چې زيات شمير تر لاسه

کړ ولو که فريب او درواغو هم وي هغوی د دوی په اصطلاح اهل شوری بلل کيږي او هغوی لره د قانون او تشريع حق دی .

۳ -په شوری کې عدد معتبر نه دی بلکي هغه رأی د منلو وړ ده چې د شرعې موافق وي ، مګر په ديموکراسۍ کې عدد معتبر دی کچيرې د اکثرو رأيې په باطل او ناروا کار ورکړ شي هغه د منلو وړ ده.

۴ -په شوری کې يوازې په اجتهادي مسائلو کې مشوره او رأی ورکول کيږي د دين په ثابتو احکامو کې هيڅ څوک د مشورې او رأی حق نلري ، مثلاً : د شرابو ، زنا او لواطت حرمت ثابت دی نه پکې څوک د مشورې ورکولو حق لري او نه هم څوک د رأی ورکولو حق لري.

مګر ډيموکراسي چې عصري شرک بلل کيږي ځانته د قانون جوړولو حق ورکوي کولای شي حلال حرام وګرځوي او په حرام باندې د حلال حکم ورکړي.

۵ -د شوری منهج او قانون اسلامي شريعت دی، کچيرې د چا رأی او مشوره د شرعې خلاف وي د اسلامي اخلاقو خلاف وي هغه لره هيڅ وزن او هيڅ اصل او اعتبار نشته.

مګر په ديموکراسۍ کې ديني منهج ته اعتبار نشته ، مطلق اخلاق وجود نلري، حتی که چيرې د حيوان څخه يو پست او رذيل کار باندې اکثريت رأی ورکړي د منلو وړ دی لکه د اشرف مخلوق انسان نکاح د

سپي او خره سره ، او يا د نارينه واده له نارينه او د ښځينه له ښځينه سره چې داسې عمل پر حيواناتو کې هم وجود نلري [٤٢].

## پای

**او وروسته له دې چې د کتاب په پای باندې تير شولو ، نو اوس په مونږ باندې څه کول لازم دي ؟**

ښايي چې دا سوال هميشه له خپلو ځانونو څخه وکړو ، او سمدستي د هغه د سم او عملي ځواب کوښښ وکړو .

اوسني جنګونه او حملې د هيڅ درک او بصرت لرونکي څخه پټ نه دي هغه که عسکري دي او که فکري کوم چې زمونږ دوښمنانو يهودو ، نصارا او بت پرستانو لخوا زمونږ د ځمکو او فکرونو د اشغال په مقصد تپل شوي تر څو مونږ له خپل دين څخه لرې کړي او په دې کار کې دوی تر ډيره خپلو موخو ته رسيدلي دي ، او دا کار په دې باندې دلالت نه کوي چې دا زمونږ امت دی ، اسلامي امت د يو صحيح دين او پاکې عقيدې تر بيرغ لاندې دی چې د سترو فتوحاتو خاوند وو ، دا چې اوس اکثره اسلامي هيوادونه د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم دوښمنانو يهودو او نصارا او نورو ته د ذلت سر ټيټ کړی

[٤٢]- د نور تفصيل لپاره وګورئ : «الشوری المفتری عليها».

دی او په ټيټ سر باندې د هغوی پيروي او تقليد کوي نو ځکه د دغه ذلت سره مخ شوي دي .

حال دا چې يقيناً پر مونږ باندې د دين په ټولو چارو کې هغه که عقيدتي وي ، قولي وي ، فعلي وي پوره پيروي واجب او لازمه ده مګر څه چې پر مونږ واجب دي د هغوی ځای بيروني افکارو او پرديو اصطلاحاتو نيولی دی .

پر مونږ لازمه ده چې د دغه ډول پرديو اصطلاحاتو چې ډير يې د دين څخه بولي باخبر وو .

او زمونږ په امت کې ځني هغه کسان چې د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم او مسلمانانو دوستي يې ترک کړې او دغه ډول پرديو اصطلاحاتو ته تبليغات کوي او خلک د هغه خواته هڅوي ددې کار څخه منع کړو او مخه يې ونيسو تر څو مونږ د هغوی د ګمراه کوونکو اصطلاحاتو په تفسير باندې و نه غولېږو کوم چې زمونږ په سترګو کې يې داسې جامه ورکړې چې هغه له دين او شرعي احکامو څخه دي .

او زمونږ لپاره ښايي چې د هغه د پېژندنې او کشف په اړه پوره قدرت او بصيرت ولرو کوم چې زمونږ د نظر څخه پټ دي او د هغوی تبليغاتي

لارې وپېژنو او د دوی نوي کارول شوي اصطلاحات وپېژنو .

مسلمان لره نه ښايي چې د هغوی تقليد وکړي بلکې مؤمن بايد د فرائضو ، نيکو اعمالو ساتنه وکړي او د دغو دلې په اړه پوره معلومات ولري لکه الله تعالى چې فرمايي : [وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ] (سوره محمد :٣٠ ) .

او ددې اهمه وجه داده چې مسلمانان د اسلام د سياسي نظام او د هغه د تاريخ له حقيقت څخه نا خبره دي پر مونږ باندې واجبه ده چې ځانونه ورباندې پوه کړو او دا دول علم او پوهه حاصله کړو ، زمونږ د امت تاريخ جوړونکی تاريخ وو ، د هيڅ امت داسې تاريخ نشته لکه زمونږ د امت او زمونږ سياسي نظام هغه بهترين او ستر نظام وو چې بشريت پېژندلی دی .

په اوس وخت کې په درېو څيزونو کې پوهه لرل ډير مهم دي د هيڅا لپاره رواه نه چې په هغو کې خپلې هڅې او کوښښ وځنډوي :

١- د اسلامي امت تاريخ : د اسلامي امت پخوانی او اوسنی تاريخ کوم چې د ځمکې د هرې برخې په منبرونو يې د توحيد او اسلام بيرغونه پورته کړي وو .

٢- د اسلام سياسي فقه .

۳- د اسلام اقتصادي فقه .

په نن عصر کې دا قضيې د مسلمانانو په معاشره او ټولنه کې مهمې قضيې دي کوم چې په مختلفو ډولونو يې د کفر رنګ خپل کړی دی او په دا ډول امورو کې د پورته بيان شويو علومو زده کول پر ټولو مسلمانانو لازم دي.

دا چې نن ورځ اسلامي امت هر دوښمن ته د عالم د افکارو په برخه کې آسانه لمړی او آسانه ښکار ګرځيدلی دی علت يې په همدې شيانو کې جهل او ناپوهي ده چې تقريباً زيات مسلمانان د هغه د هويت څخه نا خبره دي.

نن د امت ضعيف حالت او ټوټې ټوټې کيدل او په اسلامي هيوادونو باندې د زياتو مجرمينو او الحادي مرتدينو کليدي قدرت او حاکميت نتيجه د همدې فقه ورکيدل دي ، آيا دا به ممکنه وه کچېرې ټول مسلمانان د اسلامي نظام په سياسي فقه باندې پوره پوهيدلای نو پر هغوی به کوم کافر ، مرتد او زنديق تسلط کړی وای ؟

کچېرې ټول مسلمانان د اسلام د سياسي فقه په اړه پوهه او بصيرت لرلای نو دا به ممکنه وه چې د مسلمانانو پر ملکونو دې کوم کافر ، مرتد ، زنديق او منافق تلسط کړی وای ؟

او کچېرې ټول مسلمانان د اسلام په اقتصادي فقه باندې پوهيدلای نو آيا دا به ممکنه وه چې د دوی په منځ کې اشتراکيت او کپيټليزم رواج شوی وای ؟

او کچېرې ټول مسلمانان د اسلامي امت په تاريخ باندې پوهيدلای نو دا به ممکنه وه چې کوم دجال دې راشي او خلکو ته دې ووايي چې د اسلامي امت خو ټول تاريخ همداسې وو لکه نن ؟

وګورئ اسلامي امت ۸۰۰ کاله په اورپا او ۶۰۰ کاله په ۵،۶ ميليون کيلو متره ځمکه باندې حکومت کړی دی او په همدغه وخت کې امريکا او روسيې د سرټيټې جزيې ورکړې دي .

بيا مونږ وايو او دا هيله لرو چې مونږ دې په عالم باندې خپل قيادت تر لاسه کړو او د اسلامي حکومت او خلافت اعاده به کوو پرته له دې چې د دغه فقه علم او درک په خلک کې خپور کړو .

او آيا دا د اسلام په تله کې جايز ده چې زمونږ ټولو کوښښ يوازې د هغو احکامو تعليم او تعلم ته وي چې هغه په ټول عمر کې يو ځل ادا کيږي او په هغه کې د مذاهبو فقهي دلائل وړاندې کړو او بل طرف زمونږ څخه بالکل پاتې شي .

حال دا چې پر مونږ واجب ده چې د ټولو په اړه پوره ادراک ولرو او هغه نورو خلکو ته ورسوو .

او د عامو مسلمانانو سربېره د علماوو ، زده کوونکو او داعیانو ستر مسئولیت دی تر څو هغه د جمعو په خطبو ، په درسي حلقو ، سیمینارونو او مختصر او آسانه کتابونو کې مسلمانانو ته ورسوو .

او پر مسلمان باندې واجبه ده چې د هغه په اړه بحث او څېړنه وکړي ، پوښتنه وکړي او د پوهیدو لپاره عالم ته ورشي او علماء باید بیړه وکړي کرار کیني تر څو خلک ورته راشي او پوښتنه ځنې وکړي بلکي دوی باید له پوښتنې مخکې خلک خبر کړي او د دغو خطرناکو شیانو په اړه معلومات ورکړي کوم چې غواړي مسلمان له دین څخه لرې کړي .

او کچېرې علماء او اهل علم دا کار ونکړي خلک د دغو شیانو څخه خبر نه کړي نو څوک به دا کار وکړي ؟

اوس وخت د عمل وخت دی ، د کوښښ ، د قربانۍ او ایثار او جهاد وخت دی ، له یو بل سره د اختلاف ، مشاجرو او تورونو لګولو وخت نه دی او نه هم مونږ ددې لپاره وخت لرو ، او دا دواړه زمونږ څخه عمل غواړي (زده کړه او نورو ته رسول)، هیڅ داسې څوک نشته مګر چې هغه د خپل توان موافق قادر وي چې د تعلیم او ثقافت په برخه کې

د دين لپاره څه خدمت وکړي ، نو ولې مونږ شاته ځو او د نورو پايلو ته انتظار يو ؟

آيا دا ممکنه ده چې يو کس د خپل تجارت د پرمختګ او کروندې د سمون لپاره کوښښ کوي او بيا وايي : دا دور زمونږ نه دی بلکي دا د علماوو او زده کوونکو او داعيانو دور دی ! آيا زمونږ دين خاص د علماوو ، زده کوونکو او داعيانو دين دی ؟

هو د هغوی څخه د نورو په پرتله مخکې مطالبه کيږي لکن زما او ستا دور او مسئوليت پاتې دی مونږ ټول د خپل توان موافق مسئول يو ، ورځې تيريږي او هره ورځ چې په هغه کې لمر ډوبيږي پرته له دې چې مسلمانان د دين لپاره کوښښ ونکړي نو دوی اصلاً پخپل ځان باندې د دوښمن د سلطې او واک لپاره مرسته کوي .

د مثال په توګه زمونږ څخه يو کس لږ شان عمل کوي هغه دا چې : د ځمکې په ختيځ او لويديځ کې مسلمانانو ته دعا کوي ؟ او يا زمونږ څخه يو کس د في سبيل الله مجاهدينو لپاره د نصرت دعا کوي تر څو پر کافرانو برلاسي شي ؟ په دې دعا باندې به څومره لګښت شوی وي ؟ هيڅ شی .

مکر دلته د اسلام او مسلمانانو په غم او درد کې مشغول زړه او په دنيوي شهواتو کې غرق زړه تر منځ فرق دی .

نو کله چې دا هغه لړ شی دي چې يو کس يې وړاندې کولای شي نو د زيات لپاره خو حد نشته [وَفِي ذَلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ] (المطففين :٢٦ ) .

او زمونږ څخه چې د هر يوه زړه د اسلام او مسلمانانو په امورو وتړل شو . نو هغه کولای شي چې د الله تعالی په مرسته او نصرت د کامل خلافت د قيام لپاره دوامداره کوښښ وکړي لکه څنګه چې مخکې د څمکې په ختيځ او لويديځ کې وو . تر څو د اندلس پر منارو بيا حکومت وکړي : الله أکبر الله أکبر لا اله الا الله .

نسأل الله العظيم من فضله العظيم آن يجعلنا من جند النصر و التمکين ، و ان يرزقنا الاخلاص و التأبيد ، انه جواد کريم ... اللهم آمين

محمد بن شاکر الشريف